اووم کال دویمه ګڼه، پرلپسې ۴۰ ګڼه، شعبان المعظم –رمضان المبارک ۱۴۳۴هق، جولای ۲۰۱۳ م

# شهامت




## دنېکمرغه کوچني اختر درارسېدو په مناسبت دعالیقدر امیرالمؤمنین پیغام

## نړیوال !دې دافغانستان دننه څرګند اوړانه واقعیتونه درک کړي !!

## اخترکې د مبارکۍ (تهنئه) شرعي حیثیت!

## دمیډیاتود ډګر اواسلامي نړۍ.....




## په مصر کې دمحمد مرسي دولت ولې اوڅنګه ړنګ شو؟

## بخاطرپایان دادن به جنگ در افغانستان آمریکا فقط یک گزینه در اختیار دارد

## دپکتیا ولایت له جهادي مسؤل سره مرکه



## دمنځني ختیځ په اړه دامریکا اوږدمهاله ستراتیژي

شهامت

علمي، کلتوري او اسلامي مجله

اووم کال دویمه گڼه، پرلپسې 40 گڼه، شعبان المعظم –رمضان المبارک 1434هق، جولای 2013م

# لړلیک



**دامتیاز خاوند :**

دافغانستان اسلامي امارت

دفرهنګي چارو کمیسیون

---

**مسؤل مدیر :**

ابو ظهیر

---

**کتنپلاوی :**

شاهد ''حقاني ''لطیف عزم

حسن ''علوي'' بلال ''وحید''

نعیم '' صافی '' عابد مجاهد

قاري حبیب

---

**بیه :**

یوه ګڼه 20 افغانۍ او 30

کلدارې په پاکستان کې

---

**تخنیکي مسؤل :**

زرملوال او حقمل

---

**یادونه**

شهامت له سرمقالې پرته دنورو لیکنو

مسؤلیت په غاړه نه اخلي

ادرس : کابل کارته پروان عقب سینمای بهارستان برېښنالیک : Sham.shahamat@yahoo.com

بسم الله الرحمان الرحيم ! !

# نړیوال ! دې دافغانستان دننه ځمکند اوراڼه واقعیتونه درک کړي ! !

له شک پرته روان جنګ امریکا اوناټو بایللی ! ! اواوس دخپلو وحشت پالو ځواکونو دانخلاء لپاره د مصؤنیت اوډاډ په فکر کې لالهاند اوسرګردان دي !

دنړۍ خپلواک سیاسي اوپوځي کتونکي په دې اتفاق لري: که امریکا افغانستان ته له نړۍ دټولو هېوادو پوځونه اولښکرې راولي بیا به هم پرې دزوال اوشکست را الوتي سېلۍ ونه ګرځي او شکست به یې په بري بدل نکړي.

دغه وجه ده چې دامریکا دننه هم دامریکایې وګړوډېره لویه سلنه په دې پوهیدلي چې دروان جنګ نور غځول دامریکا لپاره دمال اوځان بربادولو پرته کومه بله لاسته راوړنه نلري او په عاجلانه توګه وتل یې په خیر اوګټه بولي.

هغه مهال چې امریکا دخپل مغرور ځواک په دبدبه اودنړۍ د۴۷ هېوادو دسیاسي ،اقتصادي اوپوځي ځواک په بدرګه زمونږ په غریب هېواد دیرغل تابیا نیوله ،د نړۍ په لوی شمېر هوښیارو خلکو دافغان باتور قوم تاریخ او ملي اقداروته په پام پوخ باور درلود چې دامریکا لپاره دغه ظالمانه تیری به په ډېره ګرانه بیه پریوزي اویوه نه یوه ورځ به خامخا پخپله تیروتنه اوناکامۍ داعتراف ترڅنګ ټیټ سر دخپلو عسکرو بیرته ویستلوته اړ کېږي.

دتیرو دولسو کلونو خونړي شالید ته په کتو رښتیا هم دامریکا لپاره د دغه ظالمانه تیري اقدام له دې پلوه ډېر ګران تمام شو چې ورته بې شمېره اونه جبرانیدونکي زیانونه واوښتل په لسهاوو زره عسکر یې مړه اوټپیان شول ،په لومړي ځل یې اقتصاد دتاریخ ترټولو لوېې خساري اورکود څپو وواهه اوپه لسګونو زره نورپوځیان یې دجنګ په ډګر کې په داسي بزدلانه روحیه کلابند پاتي دي چې له وړاندې یې خپلي بستري تړلي اوپه مصؤنه توګه دتیښتي چانس په لټه کې دي.

او جوته ده چې پر افغانستان دامریکایي ښکېلاک لخوا دظالمانه یرغل موخه دافغانستان په ګډون دټولې سیمې اومنطقې د هېوادو ګواښل اوله نیږدې نه دهغوئ دکړوړو دوامدارڅاروه ، خو دافغان ولس دلازواله قربانیوپه مټ دامریکا په دغو جنوني ارادو خاورې امبارشوي اودتل لپاره دافغانستان په ګډون ټوله سیمه یې له شره وژغورله !داکومه پټه اوپناه خبره نده بلکې روښانه ده چې په افغانستان اومنطقه کې اوسنۍ ټولې ناخوالې اونادودي دامریکا یانو دنامشروع پوځي موجودیت زیږنده دي چې خلکوته یې خپلوهېوادونه سور تنور ګرځولي.

داچې له نیکه مرغه امریکا په ټوله معنی شکست خوړلی اوروانه جګړه یې بایللې ، د هیڅ هېواد اوځواک له لوري لاس نیوی به یې د دغه وژونکي ګرداب له ځپو بیرون نکړای شي.

نو ! په دې لړ کې ټولو مغرضو اوغیر مغرضو خواو ته محتاط اوسیدل غوره دي ،باید هغوئ دهرداسي ګام له پورته کولو جداً ډډه وکړي چې هغه دافغان مؤمن ولس تیرو دولس کلنو ارمانونو اوهیلوته دټکا ن ورکولولامل ګرځي..هر هغه لوری چې غواړي دافغاني قضیې په حلولو کې بیطرفه مثبت رول یا کردار ولوبوي ، هغوئ باید دمتقابل احترام په ذهنیت اودمنصفانه سوچ په روحیه راوړاندې شي ، دجعل ،تزویر او منافقانه چلند دې نورپای ته ورسوي اودافغانستان دننه څرګندو واقعیتونوته په پام روش غوره کړي.

څنګه چې دافغانستان داسلامي امارت دافغان ولس ددیني اوملی ارزښتونو ممثل دی، له خوښي اورضایت پرته یې هیڅوک نشي کولی بهرنیو عسکرو ته په مصؤنه توګه دوتلو فرصت په لاس ورکړي ،تاریخ په دې شاهددی چې افغان ولس ددغسې موضوعاتوپه اړه تل ډېرحساس اوبیداردی ،هیڅکله یې چاته اجازه نده ورکړې چې وربانـدې خپلې ارادي اوغوښتني تحمیل کړي ،خپلواکو افغانانو نه وړاندې بهرني شوم پلانونه اوجریانونه داعتناء وړګڼلي اونه په راتلونکې کې داسې شوني ده ! ښه داده چې امریکا اونورې ذي علاقه خواوې د جعل اوتزویر په ځای دستونزې دحل په واقعبینانه لارو چارو غور وکړي اوله زړه نه دې ټول دافغانستان دننه روښانه اوراڼه واقعیتونه درک کړي !

# دنیکمرغه کوچني اختردرارسیدو په مناسبت

حفظه الله تعالی

# دعیدالفطر امیرالمؤمنین دمبارکي پیغام

بســم الله الــرحمن الــرحيم. الحمــد لله نحمــده ونستعينه ونستغفره، ونعوذ بالله من شرور أنفسنا، ومن سيئات أعمالنا، من يهده الله فلا مضل له، ومن يضلل فلا هادى له، وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريک له وأشهد أن محمداً عبده ورسوله

أمابعد فأعوذ باا لله من الشيطن الرجيم ( وَعَدَ اللَّهُ الذينَ آمَنُوا منكُمْ وَعَملُوا الصَّالحَات ليَسْتَخْلفَنَّهُم في الأَرْض كَمَا اسْتَخْلَفَ الذينَ من قبْلهمْ وَليُمَكّنَنَّ لَهُمْ دينَهُمُ الَّذي ارْتَضَى لَهُمْ وَليُبَدّلَنَّهُم مّن بَعْد خَوْفهمْ أَمْنًا يَعْبُدُونَني لَا يُشْركُونَ بي شَيْئًا وَمَن كَفَرَ بَعْدَ ذَلكَ فَأُوْلَئكَ هُمُ الْفَاسقُونَ (۵۵ ) النور

**د افغانستان مجاهد ولس او ټول اسلامی امت ته !**

**السلام عليكم ورحمة الله وبركاته !**

**داچې درمضان المبارک دمیاشتې دروژې ستره فریضه مو پرځای کړه، او دنیکمرغه کوچني اختر په ورځو شپو کې یاست، ټولو ته ددې ستر سعادت او خوښۍ مبارکي وایم، الله تعالی دې دټولو مسلمانانو جهاد، صیام، قیام او صدقات قبول کړي، او دسعادت ژونداو کامیابي مونصیب شه.**

**داچې سږکال یوځل بیا دحق دسنګر اتلو مجاهدینو دالله تعالی په مرسته دجهاد په ډګر کې په خپلو بیسارو قربانیو، فداکاریو او هلو ځلو سترې فتحې ترلاسه کړې، او اشغالګر یې عملا په بې سابقې ډول تیښتې ته اړ کړي، ددې سترو فتوحاتو مبارکي افغان مجاهد ولس اوټول مظلوم امت ته وړاندې کوم، او له خپل افغان مجاهد او په خپلواکۍ مین ولس نه ډېره مننه کوم چې داشغالګرو په وړاندې یې د مجاهدینو هر اړخیز ملاتړ ته دوام ور کړی، او هیله لرم چې په دې لاره کې له مجاهدینو سره اوږه په اوږه د خپلواکۍ په لاره کې خپلې مرستې نورې هم ګړندۍ کړي، لاس په دعاء یم چې الله تعالی دې نور په افغانستان او ټوله نړۍ کې دمسلمانانو کړاوونه اومظلومیت پای ته ورسوي خصوصا دسوریې او مصر مظلومو اومؤمنو ولسونو ته دې الله جل جلاله نجات ور کړي، هغوی چې ټوله روژه یې تروهلو، وږلو، نیولو اوشکنجو لاندې په میدانونو، زندانونو او روغتونونو کې تیره کړه، الله جل جلاله دې مرستندوی شي، الله تعالی دې سرلوړي او ښه تدبیر ور په برخه کړي، اوالله تعالی دې ټول مسلمانان ددښمنانو له پېټو او ښکاره دسیسو نه وساتي، الله رب العزت دې دمؤمنو زخمیانو شفا نصیب کړي اوبندیانو ته دې په خپل فضل او کرم سره دخلاصون اسباب برابر کړي.**

**درنو هیوادوالو !**

**په افغانستان کې روان جهاد خورا په بریالیتوب سره پرمخ درومي، دخالدبن ولید رضی الله عنه تر نامه لاندې دسږنیو مبارکو عملیاتو په لړ کې دهیواد خورا زیاتې سیمې د اشغالګرو غاصبانو له قبضې آزادې شوې دي، دهیواد په مختلفو سیمو کې ددښمن هغه مراکز فتحه شوي، چې تر دې وړاندې نه فتحه کېدونکي بلل کېدل، ددښمن پوځي ځواک، مورال، غرور او دبدبه دالله تعالی په مرسته ښه کلکه ځپل شوې! او نور د ماتېدو په درشل کې دي، الله تبارک**

و تعالى فرمايي: سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ . القمر ۴۵ ( زر ده چې دغه ډله شکست وخوري ، او شاوې واړوي )

بله دخوښۍ خبره داده چې دافغانستان په ټولو ولايتونو کې مجاهدين تريوه قيادت اويوه بيرغ لاندې دوروڼو غوندې ددښمن په خلاف مبارزه کوي، جهادي خوځښت دهرې ورځې په تېرېدو نور هم غښتلى کيږي، په پوځي ډګر سربيره په سياسي، فرهنګي، دعوتي، اداري او اقتصادي ډګرونو کې مجاهدين لازياتې نوې کاري تجربې او برياوې ترلاسه کوي، دجهادي صف دننه داصلاح، اخلاص، همکارۍ او اطاعت روحيه نوره هم قوي کيږي .

مؤمنو هيوادوالو او مجاهدينو وروڼو !

تاسو پوهيږئ چې همدا اوس زموږ هيواد له ډير حساس پړاو څخه تيريږي، په تيرو دولسو کلونو کې ځپل شوي دښمن نوې دسيسې اوپلانونه په کار اچوي، موږ يې دسيسو ته متوجه يو او په دې خبره باور لرو چې يوازې يو اسلامي، عادلانه، خپلواک او افغان شموله نظام کولاى شي، زموږ دهيوادوالو دنيکمرغۍ او هوساينې سبب شي، موږ به دخپل ولس په ملاتړ هيچاته اجازه ورنکړو چې دهيواد دتجزيې په شوم پلان کې کامياب او هيواد مو دسمتونو يا قومونو په نوم ووېشي، زموږ متدين ولس دخپل ګډ کور جوړول او له لويشت لويشت نه يې دفاع خپل مسؤليت ګڼي، خپل منځي يووالى او دخپلو مجاهدو وروڼو ملاتړ خپله ديني فريضه بولي، دخپل وطن آزادي او استقلال خپل مشروع حق بولي، او د ۲۰۱۴ ميلادي کال د انتخاباتو په نامه د غولوونکې ډرامې په لړ کې به ځانونه ستړي اوشريک نه کړي ځکه زموږ متدين او مجاهد ولس پوهيږي چې اصلي ټاکنې په واشنګټن کې کيږي او دغه تش په نامه واکمن دولس په رايو نه، بلکې د واشنګټن په خوښه ټاکل کيږي، په دا ډول انتخاباتو کې ګډون دوخت له ضياع پرته بله نتيجه نلري .

زه يوځل بيا ټولو هغو افغانانو ته چې ددښمن په ليکو کې دندې ترسره کوي بلنه ورکوم، چې ددې په ځاى چې خپل مسلمان افغانان شهيدان کړي بايد دخپلو ټوپکو شپيلۍ په کفري يرغلګرو او دهغوى په ملګرو وراړوي، موږ همېشه له دا ډول مبارزو زلميانو څخه داتلانو په شان هرکلى کړى او هر هغه چا ته ښه راغلاست وايو چې ددښمن صف پريږدي او خپل مجاهد ولس ته رجوع وکړي.

دغه راز هغه کسان چې ځانونه اسلام اوجهاد ته ژمن بولي خودمجاهدينو په ضد تبليغات کوي، نفاق، شکونه او بې باوري خپروي، او د کفر په ځاى يې ژبې او قلمونه خپلو مسلمانو وروڼو ته متوجه کړي، د ورور ګلوۍ له مخې ترې غواړم چې له دا ډول بې ګټې او تخريبي اعمالو لاس واخلي؛ ځکه دا ډول اعمال پرته له دې چې ددوى په خودخواهۍ او خاموالي دلالت وکړي، بله ګټه نلري، بلکې يوازې ددوى د ګناه بار درنوي .

هغه بااحساسه افغانان چې له اشغال نه کرکه لري او ديرغلګرو له شتون سره عملي مخالفت لري، که له موږ نه هرڅومره په فاصله کې دي، موږ يې وروڼه ګڼو اوپر دغه افغاني احساس يې آفرين وايو. او ټولو ته ډاډ ورکوم چې د اشغال د خاتمې په صورت کې به له هيچانه هم شخصي انتقام نه اخيستل کيږي؛ ځکه چې زموږ دغه مبارزه دذاتي ګټو اوشخصي اقتدار لپاره نده .

نړيوالو او هيوادوالو!

دراتلونکي افغانستان په اړه بايد ووايم چې اسلامي نظام او بشپړ استقلال هغه ارزښتونه دي، چې موږ ور باندې له هيچا سره معاملې ته حاضر نه يو، افغان ولس چې په پخواني او معاصر تاريخ کې يې دهمدې دوو ارزښتونو لپاره سترې قربانۍ ورکړې دي، دهمدې په خاطر يې وطن وران شوى، په ميليونونو شهيدان يې ورکړي، نو بايد پرېښودل شي ترڅو له خپلو هيلو سره سم خپلواک اسلامي نظام جوړ کړي .

دداخلي نظام دسمبالښت او بيارغونې په اړه په دې نظر يو، چې له يوه پاک، شفاف، مسؤليت پيژندونکي اسلامي نظام پرته چې ټول افغانان خپل ځان پکښې وويني بله هيڅ نسخه دافغانانو درد نه شي دوا کولاى ، ددې په ځاى چې په بهرنيو مرستو او استعدادونو تکيه وشي، افغانان بايد ځانونه په خپله سمبال او له خپلو امکاناتو په استفادې خپل هيواد ته خدمت وکړي، ددې لپاره چې له احتياج او ناخوالو مو نجات موندلى وي، ځوان نسل مو بايد په ديني او مدني (عصري) دواړو علومو ځان

سمبال کړي ؛ ځکه عصري علوم په نني عصر کې د هرې ټولنې لپاره اساسي ضرورت دی.

زه یوځل بیاوایم چې دواک د انحصار تصور له موږ سره نشته،او هرڅوک چې له اسلام او وطن سره ربښتینې مینه او وفا ولري، هغه که دهر قوم او سمت وي دایې خپل ټاټوبی دی، هیڅوک یې دخپل ټاټوبي له خدمت څخه نشي محروملی، او داړ ور کوو چې په ګډو هلو ځلو به په ګډه سره د خپل وطن خدمت کوو، اوهر چاچې داشغال سره له مرستي ښکاره پښیماني ښکاره کړه خپل ورور یې ګڼو او هر کلی یې کوو.

دبهرنۍ تګلارې په اړه زموږ بنسټیز اصل دادی چې دخپلې همیشنۍ ثابتې پالیسۍ له مخې نه چاته ضرر رسوو، نه چا ته اجازه ور کوو چې زموږ له خاورې بل چا ته ضرر ورسوي، او نه دچا ضرر زغملای شو، له هر هغه چاسره به ښې اړیکي ولرو، چې افغانستان ته دیوه مستقل اسلامي هېوادپه توګه درناوی ولري او تعلقات اومناسبات یې حاکمانه او استعماري بڼه ونلري، که هغه نړیوال طاقتونه وي، که ګاونډیان وي او که دنړۍ بل هریو هیواد، د یادونې وړ ده چې دا خبره موږ په خپلو مخکنیو پیغامونو کې او د سیاسي دفتر له لارې ټولو نړیوالو ته رسولې ده.

له اشغالګرو سره زموږ له خبرو اوتماسونو نه چې یوازې د اسلامي امارت د سیاسي دفتر له لارې تر سره کېږي هدف دادی چې د افغانستان اشغال ته د پای ټکی کېښودل شي، هیڅوک دې دافکر نه کوي چې مجاهدین به له خپلو اعلی دیني مقرراتو او ملي ګټو څخه تېر شي، زه داړ درکوم چې ددغه مقدس مقصد دلاس ته راوړلو لپاره به له هیڅ راز ناجایز مصلحت او ناروا جوړجاړي څخه کار وانخلو الحمد لله اسلامي امارت داویاړ لري چې د ډېرو امتحاني حالاتو په مقابل کې یې بې ساري استقامت کړی، په راتلونکي کې هم الله تعالی ته سوال کوو، چې په خپله لاره مو مستقیم ولري، په قطر کې د اسلامي امارت دسیاسي دفتر له پرانیستلو وروسته حالاتو ټولو ته ثابته کړه چې اسلامي امارت په خپلو پرېکړو کې خپلواک، پیاوړی او ثابت دریځ لري او داهم ثابته شوه چې اسلامي امارت د اسلامي اصولو او خپلو ملي ګټو په رڼا کې دخپل مظلوم اولس د ستونزو په هواري کې پوره اخلاص کړی او کوي یې ، لکن دا

یرغلګر او دهغوئ ملګري دي چې دستونزو اومشکلاتو د ختمولو په وړاندې په بیلابیلو پلمو خنډونه ایجادوي.

لکه څرنګه چې موږ مخکې هم ویلي چې اسلامي امارت د قدرت دانحصار فکر نه لري، د یوه افغان شموله حکومت لپاره چې په اسلامي اصولو ولاړ وي، له افغانانو سره په تفاهم باور لرو، البته اسلامي امارت د بهرني اشغال څخه د هېواد آزادول خپله دیني او ملي وجیبه ګڼي، کله چې اشغال پای ته ورسېږي دافغانانو تر منځ تفاهم به ستونزې ونه لري؛ ځکه چې د مشترکو اصولو او کلتور له وجې په خپلو کې ښه سره پوهېږي.

اشغالګر باید د تیر دولس کلن اشغال له ترخو تجربو څخه استفاده وکړي، او داشغال داوږدولو او دایمي اډو ترعنوان لاندې یوځل بیا د خپل بخت د آزمایلو کوشش و نه کړي،اونه دې نور د کابل دبې واکه ادارې په بې بنیاده او پوچو وعدو غولېږي، د دوی محلي ملګرو او اجیرانو لکه څنګه چې دیرغل دپیل په مهال دوی ته افغانستان دیوې تیارې مړۍ په حیث ښودلی وو، اوس هم غواړي دخپل اقتدار او شخصي ګټو په خاطر بهرنی اشغال او یوځي حضور دوام ومومي.

غربي یرغلګر باید اوس په دې پوه شوي وي، چې افغانان بهرني اشغالګران او دهغوی کېښنول شوي واکمنان نه مني، که دوی دا فکر کوي چې د تبلیغاتو، تزویر او مختلفو نقشو په عملي کولو یا ددوی په اصطلاح دامنیتي تړون لپاره دجعلي لویې جرګې په دائرولو اوپه نورو پلمو سره به دخپل دایمي حضور لپاره لاره هواره کړي، نو دا فکر باید له سره وباسي، ځکه افغانان لکه څرنګه چې د زړګونو اشغالګرو شتون نه مني همدغه راز دلېږ شمېر یرغلګرو یوځیانو شتون هم دخپل استقلال نقض بولي .

اشغالګر باید دافکر هم له ذهنه وباسي چې داسلامي مقاومت سرلارې او عام مجاهدین به ددوی په وعدو ،دنیوي امتیازاتو، شخصي مصؤنیت او د اشغال په حالت کې دچوکیو او منصبونو لپاره له خپلې برحقې مبارزې لاس واخلي،زموږ په مجاهدینو کې د توند لارو او معتدلو تقسیم ستاسو اوستاسو داجیرانو تش خیالي او دښمنانه تقسیمات دي، مجاهدین ټول د اسلام دمقدس دین پیروان

دي چې متحده، معتدله او واضحه تګلاره لري "وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِّتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا" (البقرة: ۱۴۳) ژباړه : او همدارنګه تاسو مو معتدل امت ګرځولي یاست ، تر څو (دقیامت په ورځ) په (نورو) خلکو شاهدان واوسئ او پیغمبر په تاسو شاهد واوسي .

دنړیوالو بشري ادارو د کار په اړه باید ووایم : هره هغه مرستندویه بشري اداره چې ځان له سیاسي اواستخباراتي انګیزو څخه پاک وساتي اوداشغالګرو لخوا داستخباراتي اوغیر اسلامي طریقوته ددعوت لپاره نه وي جوړې شوي زموږ تر ولکې لاندې سیمو کې زموږ د شرایطو اوپالیسۍ په پام کې نیولو سره خپل بې غرضه فعالیت زموږ له مسئولو کمیسونونو سره د تماس له لارې جاري ساتلی شي، که هغه دصحت په برخه کې وي، که دمهاجرینو په برخه کې، که دخوراک رسولوپه برخه کې اویاهم په نورو برخو کې .

په پای کې له ټولې نړۍ خصوصا اسلامي او منصفو هیوادونو او ولسونو، نړیوالو او اسلامي ټولنو څخه هیله لرم چې د انساني خواخوږۍ او اسلامي ورورولۍ له مخې له افغان مظلوم ولس سره د خپلواکۍ په لاره کې هر ډول مرستې وکړي، او له افغان ولس سره د خپلواکۍ په لاره کې ددوی له هڅو مننه کوم.

داسلامي امارت مجاهدینو ته باید ووایم چې دخپلو لایحو عملي کولو ته نورهم متوجه شئ، دامارت دمشر تابه اوامراو هدایات نور هم په ښه ډول عملي کړئ او دمشرانو پوره پوره اطاعت کوئ دصف قوت په وحدت کښې ده او رښتینی وحدت په اطاعت کې وي لهذا دپوره اطاعت په کولو سره خپل صف متحد و ساتئ هغه سیمې چې ددښمن له وجود څخه پاکې شوې دي اویا پاکیږي دعلماء کرامو او ولسي مخورو په مرسته او مشورو يې چارې اداره کړئ، څوک چې دمجاهد له نوم نه په استفادي سره چاته ضرر رسوي یا دپیسو لپاره خلک تښتوي، یا دجهاد په نامه شخصي اغراض په مخ وړي دا کسان نه مجاهدین دي اونه له اسلامي امارت سره تعلق لري، مجاهدینو ته امر کوم چې د امکان په صورت کې د دا ډول ظالمانو مخه ونیسي، دملکي تلفاتو د مخنیوي په برخه کې دې لازيات کوښښ وکړي اوپه دې هکله دې دامارت له نوې اداري سره چې د ملکي تلفاتو د مخنیوي او ولس او نړیوالو ته د رښتینو حقایقو د وړاندې کولو په موخه جوړه شوې پوره همکاري وکړي، د یادونې وړ ده چې دښمن د ملکي تلفاتو په اړه تل تبلیغات کړي، او ځینې جهتونه چې ځانونه بې پرې بولي متاسفانه دهمدغو تبلیغاتو پر بنسټ راپورونه خپروي، او حال دا چې په حقیقت کې ملکي تلفات خپله ددښمن په لاس رامنځ ته کیږي، احیانا که کوم مجاهد دملکي تلفاتو په مخنیوي کې احتیاط نه کوي نوموړي اداره به يې تر تشخیص وروسته مشر تابه ته معرفي کوي څو عدلي مراجعو ته وسپارل شي، او هم دې کو ښښ وکړي چې ددعوت او ار شاد او جلب وجذب کمیسیون له تګلارې سره سم په مخالف صف کې ولاړو کسانو ته دحقې لارې دعو ت ور کړي اوله مخالف صف نه دې يې را جلا کړي ، همدارنګه باید دبندیانو او زخمیانو خدمت دصحت او بندیانو د کمیسونونو له پرو ګرامونو سره سم خپل شرعي مسئولیت وګڼي! دهیواد دنوي نسل تعلیم او تر بیې ته د تعلیم او تربیې د کمیسیون له طرحه شوي پلان سره سم لازمه توجه وکړئ، تر څو زمونږ راتلونکی نسل په دیني او عصري دواړو علومو سمبال شي، او دیو متدین او مسلکي افغان په توګه د خپل ولس او هیواد خدمت وکړي، مرستندویه اسلامي ټولنې اوشتمن وروڼه دې له اقتصادي کمیسون سره مرسته وکړي تر څو په مالي جهاد سره خپله فریضه ادا او د مجاهدینو ضروریات ور پوره کړي . داختر دمبار کې ورځې په مناسبت مې له مالدارو او وس لرونکو مسلمانانو څخه هیله ده ، چې په دې ورځ دشهیدانو، بندیانو، مهاجرینو او کم وسه مسلمانانو کورنۍ هیرې نه کړې، تر څو هغوی هم د اختر په خوښیو کې شریک شي په پای کې دټولو مسلمانانو له هغو مرستونه چې له مجاهدینو سره يې کړي دي او له هغو د عاګانو نه چې مجاهدینو ته يې کړي دي دزړه له کومي مننه کوم او هیله لرم چې دوام ور کړي .

په اخر کې مویوځل بیا اخترمبار ک خپلواکي اوسرلوړي مو په برخه شه .

والسلام داسلام خادم امیر المؤمنین ملامحمدعمر مجاهد



# اختركي د مباركي (تهنئه) شرعي حيثيت!

مفتي شاهد '' حقاني ''



څه وخت مخکې مې په (اصلاح انلاين) کې ديوه چا ددې پوښتنې په ځواب کې چې په اخترونوکې دمبارکۍ ورکولو شرعي حيثيت ورته څرګند کړي، دنومورې ويب سايټ دفقهي مسايلو ديوه کارپوه ځواب ولوست ،ځواب که څه هم بد نه وو ،خو دحنفي فقهي دکتابونو پرځای يې دامام احمدبن حنبل پرحواله ورته ځواب ويلی و ،داچې څلور واړه ائمه داهل سنت والجماعت علمبرداران دي اومونږ ورته تر هر چاډير درناوی لرو ،خو دامام ابوحنيفه رح جامع مذهب سره ددې چې دداسې استفتاوويا پوښتنولپاره دځواب ويلوستره کتابي ذخيره لري ،منل شوي سلف او خلف علماء او متخصصين لري او زمونږ افغاني ټولنه هم په قاطع اکثريت دحنفي مذهب پيروان دي ،خوبيا هم ددې ملحوظاتوسربيره د مستفتي دسوال دځواب لپاره نومورې کارپوه د ځواب ديوې غښتلې مرجع په بڼه په حنفي مذهب لومړۍ کومه حواله نه وه ورکړې ،بلکې دامام احمد بن حنبل رح په حواله يې داپوښتنه ځواب کړې وه ،اونه يې دحنفي فقه له غني معدنيانونه سائل ته کومه مرغلره را ايستلې وه، ماته داسې ښکاره شوه ،چې ګوندې خدای ج مکړه زمونږ دحنفي مذهب کتابونه پدې مسئله کې کوم وضاحت نلري او يوازې حنبلي مذهب دامسئله حل کړي ،پداسې حال کې چې د(الدرالمختار ،بحرالرائق ،ردالمحتار) غوندې دحنفي مذهب معتمد کتابونه پدې باب کې ډيراستنباطات لري ،خوورته لومړۍ مراجعه او پرې اعتماد ترټولومخکې شرط دی ،چې دلته مسکوت عنه پاتې شوی و ،مونږچې دافغاني ټولنې نبض ونيسو، نوراته به جوته شي ،چې غوڅ اکثريت افغانان احناف اودحنفي فقهي مسائل تر نورومقدم بولي ،نو کوم علماء چې ددې ټولنې ديني او علمي خدمت کوي ،هم بايد په همدې ژبې ورسره خبرې وکړي ،هسې نه چې په

لوی لاس موخپله واحده تړولنه دوحدت پر ځای په ځو برخو ویشلې وي ،بل له علمي اومسلکي اړخه دافتاء داصولو په رڼا کې کوم که څوک ځان مقلد یا دمذهب پیروبولي ،نو دخپل مذهب دمسائلو پرځای پر بل مذهب باندې دفتوی ورکولولپاره هم کلک ضوابط او اصول شته، چې ددې قواعدو په رڼا کې به دبل مذهب د مسائلو په باب فتوی ورکول کیږي ،او که دمذهب له دایرې نه بهر وي ،نو بیا خوافغاني ټولنه لا دې ته اوس نده چمتو ،چې دحنفیت پرځای دعدم تقلید پرکړلیچنولارو سر شي او خدای ج مکړه دخپلو اسلافومذهبي عنعناتوته نور دپای ټکی کیږدي ،هیله موداده چې دفتوی اوقضاء دڅانګوپوهان یا کارکوونکې دا اصول په پام کې ونیسي اولومړیتوب ورته ورکړي ،پورتنۍ یادونې مذهبي تعصب یا تنګ نظري هم ونه بلل شي ،چې څنګه نو په حنفي مذهب فتوی ضروري ده !دانور خو هم حق دي..... ! ځکه همدا قواعد دهمدې څلورګونومذاهبو له منل شویو علماوولخوا لیکل شوي او دفتوی په باب کې پرې پوره باور پکار دی ،بلکې هغه اصل یې وګڼې چې له امله به یې خپل رسالت سرته رسولی وي او دخلکوسوالونوته به یې منل شوی ځواب ویلې وي.

داخترونودمبارکۍ دمشروعیت یا اباحت په باب دې هڅونې اړ ایستم تر څودمسئلې شرعي اړخونه وسپړم اودصحابه کرامو رض داثاروتر څنګ دحنفي مذهب غوندې به دموضوع دوضاحت لپاره دنورو درې ګونو مذاهبواقوال هم له حوالو سره مله رانقل کړم ، څو دموضوع حقیقت ته ځان ورسووا و ددې موضوع شرعي حیثیت ته به لاس رسی وکړو !

---

له شک پرته چې اخترونه دمسلمانانودخوشحالۍ اوتفریح ورځې دي اوکال کې دا دوه اختره داسلام دستر پیغمبرحضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم له هغه مبارک هجرت نه وروسته دیوه نعمت په بڼه دهغو دوو ورځوپه بدل کې معاوضه شول ،چې دمدینې منورې خلکوبه پکې لوبې او خوشحالۍ کولې ،لکه رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه په یوه حدیث کې داسې راغلي: أخبرنا علي بن حجر, قال: حدثنا إسماعيل, قال: حدثنا حميد ، عَنْ أَنَس, قال: كان لأهل الجاهلية يومان من كل سنة يلعبون فيهما , فلما قدم النبي - صلى الله عليه وسلم - المدينة, قال: كان لكم يومان تعلبون فيهما , وقد أبدلكم الله بهما خيرًا منهما : يوم الفطر ويوم النحر. (السنن الكبرى للامام البيهقى)

ژباړه:دانس رض نه روایت شوی چې دجاهلیت په وخت کې به دخلکو لپاره هرکال دوه ورځې داسې وي چې دوئ به پدې دواړووروځوکې لوبې کولې ،کله چې نبي کریم ص مدینې ته راغی، ویې فرمایل چې ستاسولپاره دوه داسې ورځې وي چې لوبې به مو پدې دواړوکې ورځوکې کولې اوپه تحقیق سره الله ج ستاسولپاره دادوه ورځې ددې نه په ښوورځو بدلې کړي ،چې یوه دکوچني اختر او بله دغټ اختر ورځ ده.

داروایت بل ځای داسې راغلی: 19 أخبرنا أبو طاهر المبارك بن أبي المعالي الحريمي ببغداد أن هبة الله بن الحصين أخبرهم أبنا أبو علي الحسن بن علي بن المذهب أبنا أبو بكر أحمد بن جعفر القطيعي ثنا عبد الله بن أحمد حدثني أبي ثنا عفان ثنا حماد أبنا حميد قال سمعت أنس بن مالك قال قدم رسول الله صلى الله عليه وسلم المدينة ولهم يومان يلعبون فيهما فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم ما هذا اليومان قالوا كنا

نلعب فيهما في الجاهلية قال إن الله قد أبدلكم بهما خيرا منهما يوم الفطر ويوم النحر وقد رواه الإمام أحمد أيضا عن محمد بن عبد الله الأنصاري عن حميد ( 1 ) وكذلك رواه عن الأنصاري أبو حاتم الرازي ( 2 ) ورواه محمد بن يحيى العدني عن مروان بن معاوية عن حميد ( 3 )

ورواه محمد بن إسحاق السراج عن سوار بن عبد الله عن المعتمر بن سليمان عن حميد عن أنس ورواه أبو داود السجستاني في سننه عن موسى بن إسماعيل عن حماد عن حميد ( 1 ) ورواه النسائي عن علي بن حجر ( 2 ) $آخر $ * إسناده صحيح

(الاحاديث المختارة للانصارى-ج٣/ص٢٢٠

داختر دورځود فضيلت او اهميت په هکله نورډير احاديث هم شته خو دليکني داختصار له امله په همدې حديث بسنه کوو، دلته به يې زيات په فقهي جهت باندې دڅيړنې ترکيزوکړو، ترڅوراته ددې مشروعيت او عدم مشروعيت څرګند شي.

څنګه چې کتل کيږي ټول مسلمانان داختر په مبارکيوکې دخوشحالۍ اظهارکوي اويوبل ته په لومړي ملاقات کې دمبارکۍ مروجه اصطلاحات کاروي لکه عربي اوعجمي ټولنوکې داسې اصطلاح کارول کيږي چې ((تقبل الله منا ومنکم ))همداسې ((عيد مبارک )) ((اختر دې مبارک شه ))اونورداسې .........دتبريکۍ جملې چې ترې دمبارکۍ مفهوم معلوميږي ، په عربي کې ورته (تهنئة بالعيد )يا داختر مبارکي وايي ، دا اصطلاحات شرعا څه حرج نلري اونه کوم کراهت لري، بلکې جمهورفقهاء ټول پدې آند دي، چې دامشروعيت لري او درسول الله ص دنوروصحابوو په څير د(ابي امامه الباهلي رض)او( واثلة رض ) نه هم ددې الفاظو استعمالول ثابت دی ،وروسته بحث کې به راشي چې د(مکحول )نه چې پدې باب کې دانکارکوم روايت راغلی ،هغه داميرالمؤمنين فی الحديث امام بخاری رح غوندې محدثين ضعيف ځکه بولې چې په سند کې (عبد الخالق ) راغلی اوهغه دامام بخاری په نزد منکر الحديث دی ،همداسې يې دڅلورګونومذاهبو امامان يا هم مباح يامستحب بولې او کوم ډول کراهيت بدعت پکې نه وينې لکه په لاندې عبارتونوکې به دا النډيز وڅيړل شي.

---

وفي استحباب التهنئة بالعيد قوله: "عن جبير بن نفير قال: كان أصحاب النبي(ص) إذا التقوا يوم العيد يقول بعضهم لبعض: تقبل الله منا ومنك.

قال الحافظ: إسناده حسن ". قلت: المراد ب (الحافظ) عند الإطلاق ابن حجر العسقلاني ، ولم أقف على هذا التحسين في شئ من كتبه ، وإنما وجدته للحافظ السيوطي في رسالته: "وصول الأماني في أصول التهاني "(ص 109) ، من الجزء الأول من " الحاوي للفتاوي " ، وقد عزاه لزاهر بن طاهر في " كتاب تحفة عيد الفطر " ، وأبي أحمد الفرضي. ورواه المحاملي في "كتاب صلاة العيدين "(2 / 129 / 2) بإسناد رجاله كلهم ثقات رجال "التهذيب " ، غير شيخه المهنى بن يحيى ، وهو ثقة نبيل كما قال الدارقطني ، وهو مترجم في "تاريخ بغداد "(13 / 266 - 268) ، فالإسناد صحيح ، لكن خالفه حاجب بن الوليد في إسناده ، فلم يرفعه إلى أصحاب النبي(ص). فقال:

حدثنا مبشر بن إسماعيل الحلبي عن صفوان بن عمرو السكسكي قال: " سمعت عبد الله بن بسرو عبد الرحمن بن عائذ وجبير بن نفير وخالد بن معدان يقال لهم في أيام الأعياد: تقبل الله منا ومنكم. ويقولون ذلک لغيرهم ". أخرجه أبو القاسم الأصبهاني في كتابه "الترغيب والترهيب "(ق 41 / 2 - 42 / 1). فإن صح السند بهذا إلى الحاجب، فإن في الطريق إليه من يحتاج إلى الكشف عن حاله، فلعل مبشر بن إسماعيل حدث بهذا وهذا، وبخاصة أن عبد الله بن بسر هذا – وهو المازني - صحابي صغير، ولأبيه صحبة، فيبعد أن يقول هو والتابعون المذكورون معه شيئا دون أن يتلقوه عن الصحابة، فتكون الروايتان صحيحتين، فالصحابة فعلوا ذلک، فاتبعهم عليه التابعون المذكورون.

والله سبحانه وتعالى أعلم. ويؤيد الرواية الأولى ما ذكره ابن التركماني في "الجوهر النقي "(3 / 320) من رواية محمد بن زياد قال: كنت مع أبي أمامة الباهلي وغيره من أصحاب النبي (ص)، فكانوا إذا رجعوا يقول بعضهم لبعض: تقبل الته منا ومنک. قال أحمد بن حنبل: إسناده جيد. ولم يذكر من رواه، وقد عزاه السيوطي لزاهر أيضا بسند حسن عن محمد بن زياد الألهاني قال: رأيت أبا أمامة الباهلي يقول في العيد لأصحابه: تقبل الله منا ومنكم. ثم كتب بعض إخواننا الطلاب تعليقا على نفمي المتقدم، فقال: بل قال الحافظ في "الفتح "(تمام المنعة لمحمد الالبانی)

دپورتنیو روایاتو خلص مفهوم څوشیان دي: يو داچې امام حافظ ابن حجرعسقلاني يا حافظ امام سيوطي رح څخه پداسې سند چې دیوه طریقه یې رجال ټول ثقات دي د(جبير بن نفيل په )حواله روايت رانقل كوي، چې درسول الله ص اصحابو به يوه بل ته داسې ويل (تقبل الله منا ومنكم )يعني دا كلمات به يې داختر دمباركۍ پروخت يوه بل ته ويل، بيا يې دجبير ددې روايت دتاييد لپاره د(محمد بن زياد )هغه روايت راوړی، چې د(ابن التركماني )په حواله په (الجوهر النقی )کې رانقل شوی، چې (محمد بن زیاد )پکې وايي: چې زه د(ابی امامه) رض غونډي دنوروا صحابو سره هم پاتې شوی يم، كله به چې هغوئ بيرته راتلل (البته دعيدګاه نه)نويوه بل ته به يې ويل (تقبل الله منا ومنكم )ورپسې امام سيوطي رح په حسن سند سره همدا د(محمد بن زيادالالهاني) له خولې وايي:چې ما (ابي امامه الباهلی رض)صحابي وکوت چې خپلو ملګروته یې په اختر کې ويل چې (تقبل الله منا ومنكم)......

نوددې رواياتوچې رفع يې صحابووته شوي داختر په مبارکۍ کې داپورتني الفاظ سندا ثابت شول او دوئ سلفوبه يوه بل ته اختر کې مبارکي ويله، بيهقي دمكحول لاندينی همدا يو روايت راختستی چې پکې ددې ډول مبارکۍ نه انكار رانقل شوی، خو دامام بخاري غونډې محدث دا روايت ضعيف بللی (6091 - أخبرناه أبو الحسين بن بشران ببغداد أنبأ أبو جعفر محمد بن عمرو الرزاز ثنا محمد بن الهيثم بن حماد ثنا نعيم بن حماد ثنا عبد الخالق بن زيد بن واقد الدمشقي عن أبيه عن مكحول عن عبادة بن الصامت رضي الله عنه قال: سألت رسول الله صلى الله عليه و سلم عن قول الناس في العيدين **تقبل الله منا ومنكم** قال ذلک فعل أهل الكتابين وكرهه عبد الخالق بن زيد منكر الحديث قاله البخاري (سنن بيهقی الكبرى)

---

**6522**- وَقَدْ رُوِىَ حَدِيثٌ مَرْفُوعٌ فِى كَرَاهِيَةِ ذَلِكَ وَلاَ يَصِحُّ أَخْبَرَنَاهُ أَبُو الْحُسَيْنِ بْنُ بِشْرَانَ بِبَغْدَادَ أَخْبَرَنَا أَبُو جَعْفَرٍ : مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو الرَّزَّازُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ

الْهَيْثَمِ بْنِ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا نُعَيْمُ بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْخَالِقِ بْنُ زَيْدِ بْنِ وَاقِدٍ الدِّمَشْقِيُّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ مَكْحُولٍ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ قَوْلِ النَّاسِ فِى الْعِيدَيْنِ **تَقَبَّلَ اللَّهُ مِنَّا وَمِنكُم** قَالَ: «ذَاكَ فِعْلُ أَهْلِ الْكِتَابَيْنِ». وَكَرِهَهُ. {ج} عَبْدُ الْخَالِقِ بْنُ زَيْدٍ مُنْكَرُ الْحَدِيثِ قَالَهُ الْبُخَارِىُّ.(سنن بيهقى).

ژباړه: مکحول دعباده بن صامت رض نه روايت کوي چې دا فرمايي چې ما درسول الله صلى الله عليه وسلم نه په اخترونو کې دخلکو ددې وينا په باب وپوښتل چې وايي (تقبل الله منا ومنكم) نو رسول الله صلى الله عليه وسلم راته وفرمايل چې داد اهل کتابو کاردی او بد يې وباله) خو امام بخاری رح ددې روايت په باب وايي: چې دې سند کې (عبدالخالق) راغلی او دا منکر الحديث دی، نو پدې جرح سره دمکحول روايت ضعيف او هغه داثبات روايت صحيح پاتې شو.

دموضوع په باب دمذاهب اربعو دعلماوو اقوال:

علامه زين بن نجيم رح دحنفي فقه متبحر عالم (تهنئه) يا مبارکي په دعايي الفاظو سره جايز بولي، لکه دا نو موړی عالم چې په (بحرالرائق) کې ليکي: ((والتهنئة بقوله تقبل الله منا ومنكم لا تنكر. وفي المجتبى: فإن قلت عد الغسل ههنا مستحبا وفي الطهارة سنة قلت: للاختلاف فيه والصحيح أنه سنة، وسماه مستحبا لاشتمال السنة على المستحب وعد سائر المستحبات المذكورة هنا في بعض الكتب سنة اه)). (البحرالرائق)ج/۴

يعني د(تقبل الله منا ومنكم) په عبارت سره مبارکی باندې انکار نشته او دا جايزدی، همدا ازبحرالرائق کې بل ځای هم همدا سې دجواز عبارت راغلی لکه چې وايي: ((وَزَادَ فِي الْحَاوِي الْقُدْسِيِّ أَنَّ مِنْ الْمُسْتَحَبَّاتِ التَّزَيُّنَ وَأَنْ يُظْهِرَ فَرَحًا وَبَشَاشَةً وَيُكْثِرَ مِنْ الصَّدَقَةِ حَسَبَ طَاقَتِهِ وَقُدْرَتِهِ وَزَادَ فِي الْقُنْيَةِ اسْتِحْبَابَ التَّخَتُّمِ وَالتَّبْكِيرِ، وَهُوَ سُرْعَةُ الِانْتِبَاهِ وَالِابْتِكَارِ، وَهُوَ الْمُسَارَعَةُ إلَى الْمُصَلَّى وَصَلَاةُ الْغَدَاةِ فِي مَسْجِدِ حَيِّهِ وَالْخُرُوجُ إلَى الْمُصَلَّى مَاشِيًا وَالرُّجُوعُ فِي طَرِيقٍ آخَرَ وَالتَّهْنِئَةُ بِقَوْلِهِ تَقَبَّلَ اللَّهُ مِنَّا وَمِنْكُمْ لَا تُنْكَرُ،))

البحرالرايق ج/**۵** يعني اختر کې دا مستحب ده چې تزيين پدا سې بڼه وشي چې خوشحالي پکې ښکاره شي او دخپل طاقت مناسب پکې خيراتونه وشي، خوشبويي استعمال شي، په تيزی سره عيدګاه ته لاړشي، دسبا لمونځ دخپلې محلې په جوماتکې اداشي، عيدګاه ته پلی لاړشي، اوله عيدګاه نه بيرته په بلې لار راشي او هم د(تقبل الله منا ومنكم) په الفاظو مبارکي منکره نده اونه ورته څوک بد وايي، بلکې دا هم دمستحباتو په کتار کې راځي.

همداسې دحنفي مذهب بل منل شوی کتاب (الطحطاوي على المراقي) تهنئه يا داختر مبارکی ته مستحب وايي او دا دصحابو ورض عمل بولې، لکه چې داعبارت يې ددې اظهار شهادت ورکوي: ((والتهنئة بقوله تقبل الله منا ومنكم لا تنكر بل مستحبة لورود الأثر بها كما رواه الحافظ ابن حجر عن تحفة عيد الأضحى لأبي القاسم المستملي بسند حسن)).

يعني په پدې ماثورې دعا سره دصحابي داثرله کبله داختر مبارکي مستحب ده.

وكان أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا التقوا يوم العيد يقول بعضهم لبعض تقبل الله منا ومنكم قال وأخرجه الطبراني أيضا في الدعاء بسند قوي اه قال والمتعامل به في البلاد الشامية والمصرية

قول الرجل لصاحبه عيد مبارک عليک ونحوه ويمكن أن يلحق هذا اللفظ بذلک في الجواز الحسن واستحبابه لما بينهما من التلازم اه وكذا تطلب المصافحة فهي سنة عقب الصلاة كلها وعند كل لقي (الطحطاوی علی المراقی الفلاح ج۱/ص۲۴۵

لنډه ترجمه: په تقبل الله منا ومنكم )سره د اختر مباركي دحافظ ابن حجر په صحيح سند سره دصحابي داثرله كبله مستحب ده ،اودرسول الله ص صحابه رض به چي كله يوله بل سره اختر كې مخامخ كيدل، نو يوبل ته به يې په مباركۍ كې دا مذكوره دعا ويله ،همداسې شام اومصركې د(عيد مبارک عليک )غوندې الفاظ به يو سړي بل ته ويل ،دا ممكن ده چې د(عيد مبارک عليک )اصطلاح په حسن جوازاواستحباب كې دخپلمنځي تلازم له امله د(تقبل الله منا ومنكم )پورې ملحق شي اوهمدارنګه مصافحه يا سټړي مشي هم ددې برخه كيداى شي، چې مصافحه له هر لمانځه نه پس اوهم دهر چا سره دليدوپروخت سنت عمل دى.

دطحطاوي له پورتني عبارت نه يوه بله مسئله هم معلومه شوه اوهغه په اسيايي هيوادونوكې د(عيد مبارک )يا افغاني ټولنه كې (اختر دې مبارک شه )الفاظ دي ،چې داهم لكه د(تقبل الله منا ومنكم )غوندې مشروعيت لري بلكې دطحطاوي رح په نزد مستحب او دصحابوودمأثورې دعا پورې پيوسته دي ،خونن سبا پكې ترخيم راغلى دا(عليک )كلمه ورسره خلک نه وايي يوازې (عيد مبارک ) وايي اوبس.

په فقه العبادات حنفى كې دموضوع په باب داسې وضاحت راغلى دى: أن يظهر الفرح والبشاشة لمن لقيه لما روي عن حبيب بن عمر الأنصاري قال: حدثني أبي قال: "لقيت واثلة يوم عيد فقلت تقبل الله منا ومنک. فقال: تقبل الله منا ومنک " فقه العبادات حنفى ج۱ ص۱۱۴.

- 6 - أن يكثر من الصدقة في ذلک اليوم وأن يؤدي صدقة الفطر قبل الصلاة لمن وجبت عليه )ژباړه :دڅاسره چې اختر كې مخ كيږي، دخوشحالۍ اظهار به كوي ځكه دحبيب بن عمر انصارى نه روايت شوى داوايې چې پلارمې راته حديث بيان كړى ،چې ويل يې راته زه دواثلة رض سره داختر په ورځ مخامخ شوم نوماورته وويل تقبل الله منا ومنک نوواثلة رض راته ځواب كې وويل تقبل الله منا ومنک.

همداسې علامه الحصكفي په الدر المختاركې دمباركۍ مشروعيت په ګوته كړى ،لكه په لاندينې عبارتونوكې به په تفصيل سره راشي.

(المغني فى فقه الامام احمدبن حنبل )كتاب كې راغلي چې دجمهوروفقهاوو له اقوالو نه جوته ده چې په مجموعي يا ټوليزډول داختر دمباكۍ مشروعيت ثابت دى اوپدې كې كوم حرج نشته لكه چې ليكي:

((ذهب جمهور الفقهاء إلى مشروعيّة التّهنئة بالعيد من حيث الجملة. فقال صاحب الدّرّ المختار - من الحنفيّة - إنّ التّهنئة بالعيد بلفظ "يتقبّل الله منّا ومنكم" لا تنكر. وعقّب ابن عابدين على ذلک بقوله: إنّما قال - أي صاحب الدّرّ المختار - كذلک لأنّه لم يحفظ فيها شيء عن أبي حنيفة وأصحابه ، وقال المحقّق ابن أمير حاجّ: بل الأشبه أنّها جائزة مستحبّة في الجملة ، ثمّ ساق آثارا بأسانيد صحيحة عن الصّحابة في فعل ذلک ، ثمّ قال: والمتعامل في البلاد الشّاميّة والمصريّة: عيد مبارک عليک ونحوه ، وقال: يمكن أن يلحق بذلک في المشروعيّة والاستحباب لما بينهما من التّلازم ، فإنّ من قبلت طاعته في زمان كان ذلک الزّمان عليه مباركا ، على أنّه قد ورد الدّعاء

بالبركة في أمور شتّى فيؤخذ منه استحباب الدّعاء بها هنا أيضا .

أمّا عند المالكيّة فقد سئل الإمام مالك عن قول الرّجل لأخيه يوم العيد : تقبّل الله منّا ومنك يريد الصّوم وفعل الخير الصّادر في رمضان ،وغفر الله لنا ولك فقال: ما أعرفه ولا أنكره. قال ابن حبيب: معناه لا يعرفه سنّة ولا ينكره على من يقوله ، لأنّه قول حسن لأنّه دعاء ، حتّى قال الشّيخ الشّبيبي يجب الإتيان به لما يترتّب على تركه من الفتن والمقاطعة.

ويدلّ لذلک ما قالوه في القيام لمن يقدم عليه ، ومثله قول النّاس لبعضهم في اليوم المذكور: عيد مبارک ، وأحياكم الله لأمثاله ، لا شکّ في جواز كلّ ذلک بل لو قيل بوجوبه لما بعد ، لأنّ النّاس مأمورون بإظهار المودّة والمحبّة لبعضهم.

أمّا الشّافعيّة فقد نقل الرّمليّ عن القموليّ قوله: لم أر لأصحابنا كلاما في التّهنئة بالعيد والأعوام والأشهر كما يفعله النّاس ، لكن نقل الحافظ المنذريّ عن الحافظ المقدسيّ أنّه أجاب عن ذلک بأنّ النّاس لم يزالوا مختلفين فيه ،والّذي أراه أنّه مباح لا سنّة فيه ولا بدعة. ثمّ قال الرّمليّ: وقال ابن حجر العسقلانيّ: إنّها مشروعة ، واحتجّ له بأنّ البيهقيّ عقد لذلک بابا فقال: باب ما روي في قول النّاس بعضهم لبعض في يوم العيد : تقبّل الله منّا ومنک ، وساق ما ذكره من أخبار وآثار ضعيفة لكن مجموعها يحتجّ به في مثل ذلک ، ثمّ قال: ويحتجّ لعموم التّهنئة لما يحدث من نعمة أو يندفع من نقمة بمشروعيّة سجود الشّكر والتّعزية ، وبما في الصّحيحين عن كعب بن مالک في قصّة توبته لمّا تخلف عن غزوة تبوک أنّه لمّا بشّر بقبول توبته ومضى إلى النّبيّ صلى الله عليه وسلم قام إليه طلحة بن عبيد الله فهنّأه. وكذلک نقل القليوبيّ عن ابن حجر أنّ التّهنئة بالأعياد والشّهور والأعوام مندوبة. قال البيجوريّ: وهو المعتمد .

وجاء في المغني لابن قدامة: قال أحمد رحمه الله: ولا بأس أن يقول الرّجل للرّجل يوم العيد : تقبّل الله منّا ومنک ، وقال حرب: سئل أحمد عن قول النّاس في العيدين: تقبّل الله منّا ومنكم قال: لا بأس به ، يرويه أهل الشّام عن أبي أمامة ، قيل: وواثلة بن الأسقع ؟ قال : نعم ، قيل: فلا تكره أن يقال هذا يوم العيد ؟ قال: لا .

وذكر ابن عقيل في تهنئة العيد أحاديث منها أنّ محمّد بن زياد قال: كنت مع أبي أمامة الباهليّ وغيره من أصحاب النّبيّ صلى الله عليه وسلم فكانوا إذا رجعوا من العيد يقول بعضهم لبعض: تقبّل الله منّا ومنک ، وقال أحمد : إسناد حديث أبي أمامة جيّد .

لنډه ژباړه او خلص مطلب:

**جمهورفقهاء په اخترکې دمبارکۍ په ورکولو په تولیزډول دمشروعیت حکم کوي ،**

**داحنافو مسلک** :په احنافوکې د(الدرالمختار)مصنف اخترکې دمبارکی په فکرد(تقبل الله منا ومنکم) دعا جایزبولې ،علامه شامي چې دالدرالمختارمحشي دی وایې :چې دامام ابوحنیفه رح اوملګرونه یې پدې هکله څه ندې نقل شوي ،نوځکه علامه الحصکفی پدې پورتني عبارت سره دارانقل کړ،البته محقق ابن امیرحاج وایې چې له نصوصوسره اشبه داده چې داجایز او فی الجمله مستحب ده اوپدې باب کې دجواز لپاره دصحابوواثار شته ،او متعامل په شامي ا ومصري ښارونوکې دنوروالفاظوغوندې د(عید مبارک علیک )اصطلاح مروجه ده اوددې دعا دسلفودهغې دعا سره تلازم ممکن دی ،نودواړه مشروعیت لري ،بلکې ډیرې داسې

دعاګانې مشروعیت لري چې دبرکت لپاره وي او پداسې مواردوکې یې بیا دجواز حکم وي.

**دموالکو مسلک**/دامام مالک رح نه چاوپوښتل چې یوه روژدار ته څوک ووایې چې (تقبل الله منا ومنکم) نوده ورته وویل چې نه یې پیژنم او نه ترې انکار کوم، یعني نه ورته سنت وایم او نه ترې انکار کوم ،ځکه دابنه دعا ده ،حتی چې شیخ الشبینی فرمایې چې داسې خوشحالیوکې داسې مبارکي واجب ده ،ځکه چې پریښودل یې فتنې رامنځته او صله رحمي پرې کوي ،اوپدې خوښیوکې نور الفاظ هم ویل کیدای شي ،لکه( عید مبارک )،(اختر دې مبارک شه )داسې نور....اوداسې الفاظوپه ویلوکې دجواز کوم شک نشته بلکې واجب ورته ویل شوي اوداځکه چې خلک په خپلمنځي محبت او مودت سره مامورین دي اودې سره محبت کې زیاتوړالی راځي.

**دشوافعو مسلک** :په شوافعوکې (رملي رح) لومړی د(القمولي) په حواله وایې ،چې زمونږداصحابونه داختر ، کال اومیاشت کې دمبارکۍ ورکولوکوم نقل صریح ندی راغلی، بیاوروسته دحافظ ابن حجرعسقلاني رح په حواله وایې چې ، دامشروعیت لري ،او(حافظ منذری) دحافظ مقدسي )په حواله وایې چې زما په نظر دامبارکي مباح ده نه سنت ده اونه بدعت ده ،په عام ډول دکوم نعمت دشکرداداکولویا دکوم غم نه دخلاصیدلولپاره دسجدې کولوباندې ورته استدلال کیدای شي ،لکه په صحیحینوکې د(کعب ابن مالک )رض دتوبې کیسه چې دتبوک له غزوي نه پاتې شوی وواوبیایې توبه قبوله شوه، کله چې ورته دتوبې دقبلیدوبه باب بشارت ورکړل شو ،نودمګړی ورته( طلحه بن عبید ) ورپاڅید او ورته یې مبارکي ورکړه ،نودادې لپاره دجواز دلیل کیدای شي ،پدې توګه (القیلوبي رح )دحافظ ابن حجررح )نه نقل کړې چې په اخترونو، کلونو اومیاشتوکې مبارکي ورکول یوبل ته مندوب او ښه کار دی ،(البیجوري) بیا وایې چې دحافظ ابن حجررح داخبره معتمده ده.

**دحنابله وو مسلک** :دابن قدامه په (المغنی )کتاب کې داسې راغلي چې :امام احمد رح فرمایې :که یوکس بل ته داختر په ورځ ووایې (تقبل الله منا ومنکم )باک نلري ،(حرب )وایې له امام احمد بن حنبل رح نه دنوموړې دعا په هکله چې په اخترونوکې یې خلک یوبل ته وایې پوښتنه وشوه ،هغه وویل باک نلري ،دشام خلک یې له (ابي امامه رض )نه روایت کوي ،چاوویل چې له( واثله بن الاسقع )رض نه هم روایت شوی ؟ده ورته وویل چې هو ،بیا یې وویل چې که څوک ووایې داداختر ورځ ده، داخوبه مکروه نوي ؟ده ورته وویل چې نه ،ابن عقیل داختر دمبارکۍ په هکله ځینې احادیث راوړي چې ځینې یې دادی :یقینا (محمدبن زیاد )رح وایې چې :زه دابوامامه رض اودنبي کریم ص دنوروصحابوو سره وم ،چې کله به دوئ داختر نه (داختر دلمانځه نه )راستانه شول، نوبعضوبه بعضوته ویل چې (تقبل الله منا ومنکم )یعنې الله ج دې یې زمونږاوستاسونه قبول کړي .امام احمد رح وایې چې دابوامامه دحدیث سند جیداوښه دی.

ابن قدامه المغنی کې داعبارت له لږ تغیرسره داسې راخستی:

فصل: ولا بأس أن يقول الرجل للرجل يوم العيد **تقبل الله**

فصل: قال أحمد رحمه الله: ولا بأس أن يقول الرجل للرجل يوم العيد : تقبل الله منا ومنك وقال حرب : سئل أحمد عن قول الناس في العيدين: تقبل الله منا ومنكم قال: لا بأس به يرويه أهل الشام عن أبي أمامة قيل: و واثلة بن الأسقع قال: نعم قيل: فلا تكره أن يقال هذا يوم العيد قال: لا وذكر ابن عقيل في تهنئة العيد

أحاديث منها أن محمد بن زياد قال: كنت مع أبي أمامة الباهلي وغيره من أصحاب النبي صلى الله عليه و سلم فكانوا إذا رجعوا من العيد يقول بعضهم لبعض تقبل الله منا ومنك وقال أحمد: إسناد حديث أبي أمامة إسناد جيد وقال علي بن ثابت سألت مالك بن أنس منذ خمسين وثلاثين سنة وقال: لم يزل يعرف هذا بالمدينة وروي عن أحمد أنه قال: لا ابتدئ به أحدا وإن قاله رددته عليه

(المغنى فى فقه الامام احمد بن حنبل) جزء ۲/۲۵۰ صفحه

دامام طحاوي په (مختصر اختلاف العلماء) كتاب كې ددې سره چې (ابن قدامه (په (المغني) كتاب كې دامام مالک رح نه داخترونو په مباركيو كې اباحت قول رانقل كړی، خودلته ترې داسې راغلي، چې دادعجمو كاردی، پداسې حال كې چې د(ابوامامه) رض او (واثله بن الاسقع) رض نه هم داختر دمباركۍ الفاظ ثابت دي، د(حسن بصری) رح او (محمد بن سيرين) رح په ګډون هم دتابعينو نه ثابت دي، دمختر اختلاف العلماء للطحاوي عبارت داسې دی:

كما يرى كثيرا من الناس يفعله في تهنئة العيد عبد الله بن يوسف قال سألت مالكا عن قول الناس في الفطر والأضحى قبل الله منا ومنكم قال ذلک من فعل الأعاجم وكرهه وقال عمر سئل الأوزاعي عن تلاقي الناس في العيدين بالتحية والدعاء فقال التحية بالسلام حسن وتلاقيهم بالدعاء محدث وقال عمرو بن خالد كنا نأتي الليث بن سعد في الفطر والأضحى فتقول قبل الله منک ومنا يا أبا الحارث فيقول ومنكم ومنكم وذكر ابن وهب عن الليث أنه لا بأس بذلک

وقال يحيى بن عثمان سألت الحارث بن مسكين عن ذلک فقال لم تزل الأشياخ بمصر يقول ذلک ولكن هؤلاء الذين يقولون سنين كثيرة لا يريدون أن يموتوا قال أبو جعفر وحدثنا يحيى بن عثمان قال حدثنا نعيم قال حدثنا محمد بن حرب عن محمد بن زياد الألهاني قال كنا نأتي أبا أمامة وواثلة بن الأسقع في الفطر والأضحى ونقول لهما قبل الله منا ومنكم فيقولان ومنكم ومنكم لا يعلم عن أحد من الصحابة في ذلک كراهة ولا إباحة غير ما روي عن أبي أمامة وواثلة وروى أبو عوانة عن ابن عون قال قلت للحسن في قول الناس في المعيدين تقبل الله منا ومنكم فقال محدث وذكر عبد الرحمن بن مهدي أن هذا من كلام ابن عون وقد روى حماد بن سلمة عن أيوب قال كنا نأتي محمد بن سيرين والحسن في الفطر والأضحى فنقول لهما قبل الله منا ومنكم فيقولان ومنكم ولما اتفقوا على أنه جائز لمن يريد ذبح الأضحية أن يقول اللهم تقبل مني جاز لغيره أن يدعو له بذلک وكذلک لا يختلفون في أنه جائز أن يقول للقادم من الحج قبل الله حجک فجاز مثله في العيدين وقد كان بكار بن قتيبة والمزني وأبو جعفر بن أبي عمران ويونس بن عبد الأعلى يهنئون بالعيد فيردون مثله على الداعي لهم (مختصر اختلاف العلماء للطحاوی)

پورتني عبارت كې دصحابوو(ابوامامه رض اوواثله رض) اوتابعينو حسن بصري رح او محمد ابن سيرين رح په څېرله سلفونه په اخترونو كې دمباركۍ الفاظ(تقبل الله منا ومنكم) ثابت شول، همدارنګه كه يو څوک لوی اختر كې ذبح وكړي، دتقبل دعا كولای شي، كه له حج نه راشي نو هم ورته د(تقبل الله حجک) ويل جايزدي، همداسې كه اخترونه وي نو په ورته توګه ورته مباركي جواز لري.

نن سبا يو بل دود ګډ دی، چې ځينې خلک دمباركۍ وركولو لپاره دمباركۍ كارت ورليږي، پدې باب هم دځينو علماوو نظر مثبت دی او لكه څنګه چې يې په شفاهي مباركي دجواز حكم وركوي، داسې يې

په کارت کې هم ممنوعیت نه ګوري ،لکه دې لاندې عبارت چې دابوادود دشرحي عبدالمحسن کې داسې لیکلې دی:

حکم بطاقة التهنئة بيوم العيد

السؤال: ما حكم بطاقة التهنئة بيوم العيد ؟
الجواب: التهنئة بيوم العيد سائغة، وقد جاء ما يدل على ذلک، وكونه يكتب تهنئة أيضاً لا بأس بذلک، ولا نعلم شيئاً يمنع منه، وقد ذكرت في الفوائد المنتقاة في آخرها أثراً: أن الصحابة كانوا إذا لقي بعضهم بعضاً يوم العيد قال بعضهم لبعض: **تقبل الله منا ومنكم**، وقد ذكره الحافظ ابن حجر وأظنه قال: وإسناده إسناد الصحيح، وقد أشرت إليه في آخر الفوائد المنتقاة في الفوائد المتفرقة في القسم الأخير.

شرح ابوداود عبدالمحسن العباد

ددې سوال او ځواب له عبارت نه څرګنده شوه ،چې په کارت کې چاته مبارکي ليږل هم جواز لري او ډول ممنوعيت نلري ،څنګه چې مشافهة مباركي روا ده همداسې بالكتابت هم روا ده.

دلته درمضان دمياشتي په حلول او دخول سره ځيني خلک لکه داختر دورځو يوبل ته مباركي وركوي آيا داهم په حكم كې لكه داختر ونوغوندې ده كه نه ؟ځواب يې څرګند دی ،شرح ابوداوعبدالمحسن العباد )كې ديوې پوښتنې په ځواب كې داسې ليكي: چې درمضان دمياشتې په حلول مباركي روا ده اوحكم يې لكه داختر غوندې دی ،ځكه درمضان مياشت دلوی عظمت لرونكې ده او ددې په باب تبريكي كوم ډول باک نلري ،ددې مسئلې دوضاحت لپاره همدالاندې عبارت ښه وضاحت دی لكه چې وايي ؟

السؤال: ما حكم التهنئة بحلول شهر رمضان؟
الجواب: لا أعلم بها بأساً، وهي مثل التهنئة بالعيد، والصحابة رضي الله عنهم كانوا إذا لقي بعضهم بعضاً في العيد قالوا: **تقبل الله منا ومنكم**، ولا شک أن شهر رمضان مناسبة عظيمة يفرح بها، ويسر بها، ويحرص على اغتنامها ؛ لأنها موسم من مواسم الآخرة، والناس يفرحون بهذا الموسم، ويدعو بعضهم لبعض، فينبغي أن تكون التهنئة بالدعاء، والكل يدعو بأن يوفق للصيام والقيام، وأن يأتي بما هو مشروع، سواء كان فرضاً كالصيام أو مستحباً كالقيام، فيدعو الكل بأن يوفق الله عز وجل الجميع لصيامه وقيامه على الوجه الذي يرضي الله سبحانه وتعالى.

شرح ابوداود عبدالمحسن العباد

دپورتنۍ خبرني نه دې پايلې ته رسيدای شوچې داخترپه ورځوكې يوبل ته د(تقبل الله منا ومنكم )(عيد مبارک )يا (اختر دې مبارک شه) اوداسې نورومصطلاحاتوسره مباركي وركول مشروعيت لري اومستحب عمل بلل شوی ،داچې دصحابوورض اوسلفو صالحينونه ثابت دي او دوئ زمونږ مقتدايان دي ،نوددې په هكله به كوم ډول دعدم مشروعيت كوم شک او شبه نوي پاتې ،زمونږدحنفي مذهب علماءهم لكه دنوروپداسې متبركه ورځوكې يوبل ته دمباركۍ وركولوپه هكله دجواز حكم كوي ،همدا راز دځينوعلماووپه آند خومباركي وركول يوبل ته واجب ده اوكوم ډول حرج پكې نه ليدل كيږي

# د منځني ختيځ په اړه



# دامریکا اوږد مهاله ستراتیژي

خــــــپلواک :.............................................

په نړۍ کې دامریکا اوبرتانيې سیاست له اوږدې مودې راهیسې پردوو متفاوتو وسیلو ولاړ دی، چې یوه یې استخباراتي تګلاره ده اوبله یې دیپلوماتیکه!

په ځانګړي ډول په کمزورو،منزوي اوجنجالي هېوادونو کې هغوي دخپلې خوښې دواکمني او واکمنانو درامینځ ته کولو لپاره لومړی داشخاصو اوډلـو پـه تشـخیص اودهغـوی داغیـز اوځـواک پـه پیژندلوڅېړ نه کوي،چې څوک ددوې لپاره کار کولی شي اوڅومره زورېکې دی!

پدې کې دوسلوال فوځ له جنرالانو نیولې ترسیمیزومخورو پورې هرڅـوک ترڅېړ نـې اومراقبـت لانـدې نیسـي، بیـا دهمـدې ډلـو اواشخاصـو دمشـاورت، تربیـت اوتقویـت لپـاره خفیـه میکـانیزم جوړوي، لـدې ورسـته چې دغـه ډلې اواشـخاص پـه پښو ودریږي اوخوځښت پیـل کړي،پـه پراخـه کچـه دیپلوماتیـک فعالیت ور تـه کـوي؛ پرناخوښـه واکمنـانو دنړیـوال فشـارهڅې پیـل کـړي؛ د دیموکراسـي ترشـعار لانـدې دخپلـو کسـانو دمطـرح کولـو لپـاره دهمدغو هیوادونو پر حکومتونو زور راوړي، که خبره ونه منل شوه، بیـا وربانـدي مختلـف تورونـه پـوري کـړي اوداقتصـادې بنـدیزونو ګوابښونه ور ته وکړي؛ پر ضدیې نړیوال له ځانه سره ملګري کړي، اواخیر هغـه هیـواد لـه فقـر او انـزوا سـره مـخ شـي، ولـس هـم دبې وسي،لوږې او کمزوري اقتصاد له امله دخپل حکومت نه کرکه پیل کړې، که څه هم ځینې همداسي حکومتونه پوره مخلص اوخوځنده هم وي،خـوداوخـت چې لـه ګـډو ټـولنیزو ستونځوسـره مـخ شـي، نوخپلوخلګوته هم بې ځوابه وي.

داستعمار ګرودوهمه اوترټولو اسانه لاره داوي، چې فوځي جنرالان ولري اوبیاهغه دوخت پـه تیریـدو دفوځ عمومي مشر توب تـه ورسـیږي،ددې لپـاره دهغـوی معمـول داده چې هغـه جنـرالان واخلي چې دوی فکر کوي چې دابه پـه راتلونکې کې دفوځ قایـدین جوړیږي، کلـه چې فـوځ تـر اغیـز لانـدي راولي،بیاور سـره پراخـي فوځي اومالی مرستي کوي اوپه مقابل کې فوځ ددوي شرایط مني، ددوی اکثره شرایط داوي،چې دفوځ عامـه روزنـه بایـد داسي وشي چې لـه لویـدیځ سـره دمینـې اودوسـتي روحیـه ولـري اوپـدې کې بایدهغه فوځیان اوټیټ رتبه ماموران لوړو فوځي مراتبو تـه ترفیع ونکړي، چې پـه فکـري لحـاظ لـه لویـدیځ اوپـه ځـانګړي توګـه لـه امریکاسره جوړنه وي،له بده مرغه دیوشمېر اسلامي هیوادونو فوځ همداسـی روحیــه لــري، چــې مســلمانان تــرې دخیر تمــه نشــي کولی،دیوه نږدې اسلامي هیواد دفوځ په قانون کې یوه داسي مـاده

هم شته: چې " که کوم فوځي له لویدیځي نړۍ کر که ولري، هغه د کرنلی اوجنرالي رتبې ته ترفیع نشي کولی"

څو کاله وړاندې مې د پاکستان په یوه ورځپاڼه کې د پاکستان دیوه پخواني جنرال (چې داوخت مړ و) خاطري لوستلې.هغه لیکلي و:... " زه چې کله دیوه وړوکي فوځي افسرپه توګه دټرینګ (فوځي روزنې) لپاره امریکاته ولیږل شوم، نوهلته به په فارغ وخت کې یوه سړي راسره ډیره مینه کوله اوزماسره به یې د "ولیبال" لوبه هم کوله، ډیرې ورځې ورسته چې ښه راسره بلد شو او کلک دوست مې شو،نو راته وې ویل: یوه خبره در ته کوم خو داوعده به کوې، چې ټول عمر به داخبره زما اوستاپه مینځ کې وي، ماورسره هو وکړه،ده راته ویل زه خبر یم چې ته دیوې غریبې کورنۍ سره اړه لرې او کورنۍ دې نه کوم تجارت لري اونه هم جایداد، زه به تاته دمیاشتې دومره ډالردر کوم چې ستاد کور، تعمیر موټر اونورو ټولو خواهشاتونه څوچنده زیات وي اوهر کال به یې څوچنده درزیاتوم، ماورغبرګه کړه چې ته څه خبرېې چې زه په کور کې بې وسه اوغریب یم؟

سمدستي یې زماد کلي،زماد پلار ،نیکه،خپلوانو اود کورنۍ دټولونارینه اوښځینه غړو نومونه راته واخیستل چې پدې سره زه سخت حیران شوم،ځکه ما دامریکا په سفر دخپل کورغړي هم نه وخبر کړي...

له لږفکره ورسته مې ورنه وپوښتل ته زماسره دا خواخوږي دڅه هدف لپاره کوې اودڅه په بدل کې دومره ستر لګښت راباندې کوې،هغه وویل موږ،تا ته شل کاله ورسته ضرورت لرو، دغه جنرال لیکي چې له څوور ځو فکر کولو ورسته په دې پوی شوم، چې دمراتبو پربنسټ شل کاله وروسته زه دفوځ عمومي مشر جوړیدي شم..."

داخو دیوه جنرال دخولې خبره ده چې خپل رازیې افشاکړی، خوپه داډول هېوادونو کې به داډول جنرالان اوفوځي مشران کم نه وي چې په دغه دام کې له اوله نښتي وي !

اوس که په هیوادونو کې فوځ تراغیزلاندې وي،خو ولس امریکاضد روحیه ولري، نوبیاامریکادفوځ له لارې دخپلو مخالفینو د کمزوره کولو اوټکولوخفیه پلانونه جوړوي، خوپه ظاهره دیپلوماسي نورماله ساتي اودفوځ دزور زیاتي ښکاره ملاتړ نه کوي!

په دغه ډول هیوادونو کې امریکا دفوځي واکمني اودیکتاتوري پلوي کوي اویادداسي جمهوریت ملاتړ کوي چې دفوځ په لاس وهنه جوړ اودفوځ په واک کې وي.

او که برعکس په کوم هیواد کې فوځ خپلواک وي اودامریکا دګټو ملاتړ نه کوي، نودوی په لومړۍ حربه کار کوي، په خفیه توګه خلګ پیداکوي، منظموي یې ،میکانزم ور ته جوړوي، مصارف ورباندې کوي اوبیاهمدغه ډله دديپلوماسي په ډګر کې مظلومه معرفي کوي اودنړیوالوخواخوږي ور ته جلبوي.

په دغه ډول هیوادونو کې امریکا دجمهوریت اودیموکراسي لپاره تبلیغات کوي او په ټاکنیز بهیر کې دخپلو پلویانو لپاره پراخ پروپاګند اومالي مصارف کوي؛ دهغوی دانتخابي بري لپاره ټولې پټې اوښکاره حربې کاروي.

امریکااوبرتانیه په ځانګړې ډول دجمهوریت له لارې داسلام پاله ګوندونو بری نشي زغملی اودوي ته یې مخنیوی هغه وخت ګران وي چې دهیواد فوځ خپلواک وي، او که دهیواد فوځ ددوی تراغیز لاندې وي،بیافوځ دې ته هڅوي چې دهغوی مخه ونیسي اوهغوی دومره منزوي کړي چې نور دټاکنیز بهیر جوګه هم پاتې نشي، دغه تجربې، په الجزایر ،فلسطین او همدااوس په مصر کې زموږ په وړاندې پرتې دي، په الجزایر کې تراوسه دیکتاتوري اوبیړنی قانون واکمن دی، په فلسطین کې چې کوم وسلوال فوځ نشته بلکې یوازې دحماس اونورو جهادي ډلوجلا جلا جنګیالي مسلح دي، نوامریکا ددوی دمنتخب حکومت مخه په بل ډول ونیوله،لومړی خو امریکافکرنه کاوه چې دحماس غورځنګ به رایې یوسي، دوي فکر کاوه چې دانتخاباتو له لارې به دخپلې خوښې نامنتخب اولاس پوځي مشر "محمودعباس" ته قانوني حثیت ور کړي اولدې لارې به

حماس له صحنې وباسي، خو چې کله پایله سر چپه وخته، نود لږ وخت په تیریدو یې دحماس دمنتخب حکومت په وړاندي ټولي حربې و کارولې او مخه یې ونیوله، چې اوس یې هم خپل لاس پوځي نامنتخب مشر محمودعباس ته مخه ور کړې اوخلیجي هیوادونه یې هم دې ته اړ کړي، چې حماس ته شا وګرځوي اومحمودعباس ته دفلسطیني مشر حثیت ور کړي.

په مصر کې د تونس نه دالهام اخیستونکې ولسي پاڅون په تودولو کې اخوان المسلمین کلیدی رول اداکړ ،امریکا د "حسن مبار ک" د دیکتاتوري لدې امله ملاتړ کاوه، چې مبار ک او فوځ دواړه دامریکا ملاتړی وو، حسن مبار ک هم دفوځ په مټ واکمن و، بل لور ته داسلام پالو اغیز لرونکي مشران اوقیادت په زندانو کې وو اوځیني یې پخوالا اعدام شوي وو، چې دا دلویدیځو کړیو او اسرایلو دخوښي عمل و.

اخوان المسلمین د۲۰۱۱ عربي پاڅون دیوغنیمت په توګه دخپلې ځواکمنتیا اونوي سیاسي بروز وسیله وګرځوله، ددغه پاڅون لپاره یې منظم تبلیغات وکړل، دمظاهرو په ټینګښت، ډیرښت اواستقامت کې یې ځانګړی رول اداکړ ،څنګه چې دمبار ک په رژیم کې تر ټولو زیات اسلام پال ځپل شوي وو، نوځکه دمبار ک پر ضد مظاهرونه نږدې هر اسلام پاله راوتلی و، چې پدې سره سړی ویلی شي چې ددغو مظاهرو اکثره برخه اسلام پالو جوړوله، دپاڅون له بري وروسته اخوان المسلمین خپل ټول مشران له زندانونو رابهر کړل اومنظم سیاسي فعالیت یې پیل کړ.

دمصري پاڅون پرمهال اخوان المسلمین په تاکتیکي ډول په ظاهره دنړیوالوپه وړاندي ځان دپاڅون یوه وړوکې برخه معرفي کړه ، ځکه خولویدیځ هم داسي فکرنه کاوه چې په ټاکنو کې به دهغوی بری حتمي وي.

دانتخاباتولپاره امریکاد "البرادعي" او "عمرموسی" په شمول په ټولو لیبرالانو پوره مصارف وکړل اودهغوی دپرپاګند لپاره یې میډیاهم وقف کړه، خوددوې دتوقع خلاف اخوان المسلمین دخپلو اتحادي ډلوپه ملتیا ټاکنې وګټلې، چې دا دامریکا لپاره یو تریخ پیغام و، ځکه خو تیره ورځ دمصري فوځ مشر "عبدالفتاح السیسي" په ښکاره دمیډیا په وړاندي وویل چې مالومړی هم اسلام پالو ته ویلي و، چې دوی دې ولسمشري ته خپل کاندید نه دروي، چې داډیره معنا داره جمله ده!

په ټولټاکنو کې له بري وروسته امریکاسمدستي ددوی مخنیوي شرماوره وګڼل اوبل خوادمصري ولس احساسات هم لاتازه وو. نوځکه یې فوځ ته مشوره ور کړه چې دڅه وخت لپاره صبر وکړي او په یومتبادل پلان تیز کار پیل کړي.

امریکا دخلیجي هیوادونو او اسرایلو په ملګر تیا په تېریوه کال کې دمنتخب مصري حکومت پر مخالفینو پراخ مصارف وکړل، تر څو دیوې داسي فضا په جوړولو برلاسي شي، چې دیوه ولسي فشارپه نوم داخوان المسلمین حکومت را ونړوي، ددې لپاره پوره یو کال فعالیت وشو، بار بارلاریونونه وشول ،چې بالاخره دفوځ اواستخباراتو په خفیه پروګرام خلک وهڅول شول چې کوڅوته راووزي، خلک رااووتل پراخ تبلیغات ور ته وشول، اوددې کار دوام ته تشویق شول، دا دمنتخب ولسمشر دپرځولو لپاره یوه حربه شوه ،چې بالاخره دروان کال دجولای دمیاشتې په ۳مه ،نه یوازي داچې داخوان المسلمین پر حکومت فوځ اواستخباراتو کودتا وکړه، بلکې دولسمشر په ګډون یې ګڼ شمېر داخوان المسلمین مشران په زندانونو دننه کړل، له حکومت پلوه میډیانه پر ته نور خبري چاینلونه او تلویزوني شبکې یې ټولې ونړلې، حتی چې دمخالفینو خبرونه خپرول هم یو جنایت وګڼل شو.

امریکا هیڅ عکس العمل ښکاره نکړ ،بلکې اعلان یې وکړ چې له مصري فوځ سره به مرستو ته دوام ور کړي، له بلې خوا اسرایلو په زغرده ددغه کودتا هر کلی وکړ ،سعودي، کویټ اوعرب امارتو ور سره په ملیاردونه ډالره مرستې اعلان کړې.

## دحماس دانزوا اوټکولو مخفي طرحه

داوخت چې له یوې خوا دسوریې په څیر داسرایلو ستر رقیب په جګړه کې ښکیل اومنزوی دی، اودلبنان حزب الله هم دسوریې له

حالاتو سره ټوله توجه اسرائیلو ته نشي اړولی، دمصر اسلام پاله دولت هم ونړید اوخلیجي هیوادونه هم له محمود عباس سره دوستانه پالي، نودحماس اسلامي غورځنګ له درنې انزوااوتنهایي سره مخ دی،بل خوادسوریې په سر دحماس دګوند دریځ له ایران اوحزب الله دواړوسره دحماس فاصله زیاته کړې،نواسرائیلو اوامریکاته دا ډیر ښه فرصت ښکاري چې حماس له درنو ستونزو سره مخ کړي.

دامریکا خطرناکه طرحه داده چې غواړي دمحمود عباس اواسرائیلو ترمینځ دخبرو دپیل په نارو دنړیوالو اواسلامي هیوادونو توجه بل خواواړوي اودحماس غورځنګ چې دفلسطیني مقاومت دملاتیر دی، یوې نوې کندې ته ورټیل وهي، اوپدې کار کې ښایي دمحمود عباس له اداري اودمصر له فوځ نه کار واخلي،همدااوس چې مصري فوځ پراخواني ولسمشر له حماس سره دارتباط تور پوری کړی داډیره معناداره معماده،یوخولدې نه ښکاري چې مصري فوځ حماس ته نور دیوې دښمنې ډلې په سترګه کتل غواړي،بل خوا څو ورځې وړاندې پرحماس داتور هم ولګول شو،چې غواړي په مصر کې داخوان المسلمین په ملاتړ ترهګربریدونه ترسره کړي،ددا ډول تورونو ترشا ځانګړي اهداف شتون لري،چې یو هدف یې داهم کیدای شی، ترڅو دحماس ډله دسیمې په کچه په فوځي فعالیتونو تورنه کړي اوپرضدیې نړیوال عکس العمل ته لاره هواره شي.

امریکا داخوب هم ویني چې ښایي په مصر کې داخوان المسلمین پرضد دفوځ بې رحمه اقدامات ځینې اخوانیان وسله والې مبارزې ته مجبوره کړي،چې داوخت به وسلوال اخوانان اودحماس ډله په اسانې په یوه ګراف کې راشي اوحماس به دمصر دملي امنیت دخطر په توګه دمصري فوځ هدف هم وګرځي،چې پدې سره به دحماس منزوی شوی حرکت دمصر اواسرایلو په ګډه جبهه کې دمرګ تر کندې وځپل شي!!!

همدااوس هم پدې اړه ځینې اسناد افشا شوي،چې دمحمودعباس اداره اواسرایل غواړي چې حماس دسینا په پیښو کې ککړ ثابت کړي.

بل پلوته دالجزیره تلویزون پر پرده پرون هغه لیک خپور کړای شو،چې دمحمودعباس داداري لخوادمصر دفوځ مشر ته استول شوي اوپکې داخبر ورکول شوی چې دحماس غورځنګ له پرځول شوی ولسمشر "محمدمرسي" سره استخباراتي اړیکې لرلې اودواړو ګډپلانونه لرل، ددغه لیک اصلي کاپي په لاندي ډول ده:

پدې لیک کې چې په عربي ژبه لیکل شوی، په لوی لاس هڅه



دولـــة فلســطين
جهاز الأمن الوقائي
مكتب رئيس الجهاز

PALESTINE PREVENTIVE SECURITY

الرقـم : 175/25
التاريخ : 2013 / 07 / 14

فخامة السيد الرئيس القائد العام حفظه الله ،

تحية الوطن وبعد ...

الموضوع : لقاء مدير مكتب الممثلية المصرية في رام الله

بالإشارة للموضوع أعلاه فقد قمنا وحسب تعليماتكم بزيارة مكتب الممثلية المصرية في رام الله والجلوس مع مدير المكتب هناك لتوضيح عدة أمور حول المعلومات التي تم إعدادها بخصوص تدخل حركة حماس في الشأن المصري، حيث نقلنا صورة الوضع الداخلي لحركة حماس وحالة الارتباك الشديد التي تعاني منها نظراً لعزل الرئيس الإخواني محمد مرسي بهذه السرعة مما اضطر الحركة إلى اتخاذ قرار بتقديم الدعم الكامل على الأرض لجماعة الاخوان المسلمين بالتنسيق مع الجماعات الجهادية والسلفية بسيناء والبدء بتنفيذ السيناريوهات التي تم اعدادها مسبقاً للسيطرة على بعض المناطق الحدودية مع قطاع غزة خاصة رفح والعريش والتي كان من المفترض أن تتم في حالة عدم استقرار الاوضاع في مصر ولكن في ظل وجود الرئيس المعزول لتوفير الغطاء السياسي لذلك وهذا القرار أجمع عليه المكتب السياسي وقيادة كتائب القسام بالأغلبية، كما ويسعى المكتب السياسي لحماس للتغطية على المشاركة العملياتية للحركة فيما يحدث في مصر تحسباً لاستقرار الأوضاع وغياب الإخوان عن المشهد، والقلق الشديد الذي انتاب حماس خلال الأسبوع الماضي إزاء تحركات الجيش المصري على حدود غزة وهدم أنفاق التهريب، ودخول مروحيات مصرية لقطاع غزة لمراقبة قوات القسام المنتشرة على الحدود، مما جعل قيادة حماس تمتنع عن الإدلاء بتصريحات واضحة حول موقف الحركة، وستواصل قيادة حماس الاتصال بالمسئولين المصريين والاصرار على نفي تورطهم في أية أحداث والتأكيد على عدم تدخلهم في الشئون الداخلية المصرية، وأن حماس لا زالت مستمرة حتى الآن في تكثيف نشاطها العملياتي داخل سيناء بالتعاون مع جماعات السلفية الجهادية لاستنزاف القوات المسلحة المصرية بالهجوم على نقاط الجيش ونصب الكمائن تحت اشراف القيادي بالقسام المدعو رائد العطار المسئول الرئيس عن التنسيق مع الجماعات الجهادية وتهريب السلاح من شبه جزيرة سيناء، حيث لا زالت أنفاق تهريب السلاح والأفراد تعمل حتى اللحظة وبكثافة لاستباق الأحداث في حال تم اكتشاف هذه الأنفاق من قبل الجيش

شوې چې دحماس غورزنګ اواخوانیانو دمصري فوځ په خلاف په وسلواله مبارزه تورن کړي.

داډول هڅې دمنځني ختیځ لپاره دامریکا اومتحدینو داوږدمهاله ستراتیجي یوه برخه ده، داوخت چې عراق اوسوریه له پښو لویدلې اوپه افریقاکې هم دقذافی رژیم نشته ،ایران هم دخپل حیاتي دوست بشارالاسدپه مرسته بوخت دی اومصرهم داسرایلو دمخالفانو په واک کې ندی،نودا داسرایلو لپاره ښه فرصت دی،چې خپل اصلي مخالفین په اساني سره ترفشار اوګذار لاندي راولي...اِلّامن رَحِم رَبِّيۤ

# بناطر پایان دادن به جنگ در افغانستان امریکا فقط

# یک گزینه در اختیار دارد

محمد الیاس عاصم

مسئله حل بحران افغانستان نسبت به افغانها برای امریکایها بسیار قابل برسيي ونگرانی است ، آمریکا که در تاریخ دوصد ساله خود چنین جنگ طولانی را نه دیده بود بلکی اصلا در این عصر تکنولوژي جدید و مدرن فکر نه میکرد که با این قسم جنگ مواجه خواهد شد که پهنا ودرازی بسیار آزآن دارد که قبلا پیش بینی شده بود ، اکنون ممکن درک کرده باشد که واقعیت ها هرگز طوری نه بوده که آمریکا ازآن مطالعه داشت ، در تاریخ بشریت امپراطورها و کشور های زور گو همیشه از رویش همچو امریکا استفاده نموده اند ، مسائل را بسیار اندک نگرسته و خود را توانمند کنترول وضعیت پنداشته اند ، از فرعون گرفته تا ابوجهل ، از چنگیز تا انگلیس و اینکه از اتحادجماهر شوروی تا آمریکا همه در آغاز نبرد با گروه کوچک ولی دارای ادیال بلند ، ناتوان ولی با اراده ، مستضعف ولی هوشیار ، کم بضاعت ولی با ایمان و دلیر مسائل را از حجم اصلی آن به مراتب کمتر زیر برسي وتحقیق قرار داده اند و حالت را نه آنچنان که واقعا بود تصور کرده اند ، اگرفرعون در روز اول آغاز مناقشه با حضرت موسی علیه السلام این را نیز تصور میگرد که روزی در قعر دریایی مصر ناله ء (آمَنتُ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا الَّذِي آمَنَتْ بِهِ بَنُو إِسْرَائِيلَ وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ) را سر خواهد داد هرگز قدرت و امپراطوری خود را از دست نه میداد بلکی حاکمیت خود را میتوانست از

انتخاب منفی به گزینش مثبت تغیر دهد و از صدای (أَنَا رَبُّكُمُ الْأَعْلَىٰ) به انا عبد الله تغیر جهت میکرد و دیگر هم به حاکمیت خود بالای ملت مصر ادامه میداد .

همچنان اگر ابو جهل در برابر حق از پست فطرتی و تکبر استفاده نه میکرد بلکی به داعیه حق حضرت پیامبر اسلام صلی الله علیه وسلم می پیوست حاکمیت قریش را از دست نه میداد بلکی خود یکی از با قدرت ترین و با وجاهت ترین اشخاص همچو حضرت عمر رضی الله تعالی عنه باقی می ماند و در آن صورت صفحه درخشان در تاریخ بشریت میداشت

**فرعون گرفته تا ابوجهل ، از چنگیز تا انگلیس و اینکه از اتحادجماهر شوروی تا آمریکا همه در آغاز نبرد با گروه کوچک ولی دارای ادیال بلند ، ناتوان ولی با اراده ، مستضعف ولی هوشیار ، کم بضاعت ولی با ایمان و دلیر مسائل را از حجم اصلی آن به مراتب کمتر زیر برسي وتحقیق قرار داده اند و حالت را نه آنچنان که واقعا بود تصور کرده اند ، اگر فرعون در روز اول آغاز مناقشه با حضرت موسی علیه السلام این را نیز تصور میگرد که روزی در قعر دریایی مصر ناله ء (آمَنتُ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا الَّذِي آمَنَتْ بِهِ بَنُو إِسْرَائِيلَ وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ) را سر خواهد داد هرگز قدرت و امپراطوری خود را از دست نه میداد**

همین گونه ، چنگیز ، انگلیس ، اتحاد شوروی و اینک آمریکا اگر در آغاز نبرد با افغانهای مسلمان و راد مرد تصور انجام حتمی و راستین قضیه را میتوانستند به حالتی که دوچار هستند هرگزمبتلا نه میشدند ، ولی این ابله های تاریخ نه میدانستند که دربرابر کدام ملت ، کدام اراده ، کدام تیوری ونهایتاکدام ادیولوژی قرار میگیرند ؟

اینها فکر میکردند که میتوانند توسط قدرت مادی خود بنیاد عقیدوی ملت افغان را متزلزل سازند و جنگ با افغانها هم مثل سائر جنگ های بشری خواهد بود که طرفین قضیه اتکاء کامل به توانایی مادی دارند و انگیزه هردو جانب استوار بر منافع شخصی میباشد .

ولی اکنون لازم است که آمریکا همه حقائق را درک کرده باشد ، جنرالهای آمریکایی باید بخاطر آینده بشریت از قصهء های جنگ در افغانستان ، همچنان از مردانگی افغانها سخن گویند ودیگر سبب نجات زور گوهای آینده شوند .

به تصورما امریکا اکنون فقط یک گزینه در اختیار دارد آن هم خروج بلاقید وشرط از کشور ما افغانستان است ، ونیز پیشیمانی از خطاء که دوازده سال قبل آن را مرتکب شده بود.

امریکا هرگز توان آن را نه دارد که جنگ افغانستان را به نفس آرام ادامه دهد ویاافغانها را متقاعد به قبولاندن غلامی نماید ، اگر امریکا تصور داشتند پایگاه های دائمی در افغانستان را مثل که ادعا دارد داشته باشد پس باید متیقن شد که ملت ما هرگز ملت غلام فطرت نیست ونه هم در برابر تجاوز و تسخیر آرام خواهد نشست ، ما به نیرو جوان خود باور داریم که تا آن زمان جهاد را ادامه خواهد داد تاکه آخرین عسکر اشغالگر را نیز از تمام حدود کشورخود براند و صاحب اختیار کلی در مملکت شود .

اگر امریکا هنوز هم ملت غیور ، مسلمان و راد مرد افغان را نه شناخته باشد ودر برابر آنها از ادامه جنگ سخن گوید پس منتظر افتضاح بیشتر باشد و روز فرا خواهد رسید که حیثیت باقی مانده خود را نیز به باد خواهد داد و درنهایت راه شرم آور گریز را توأم به تلفات سنگین خواهد پیمود . ان شاءالله وما ذالک علی الله بعزیز

دپکتیا ولایت جهادي مسؤل مولوي عبدالکریم :

# په پکتیاکې دامریکایانو له تیښتې وروسته په ګڼو سیمو داسلامي امارت سلطه ټینګه شوې ده

پکتیا ولایت دافغانستان په جنوب ختیځ کې پروت دی ، چې لویدیځ ته یې غزني ولایت ، جنوب ته یې پکتیکا او خوست ولایتونه ، ختیځ ته یې دپاکستان قبایلي سیمه کورمه ایجنسۍ اوشمال ته یې لوګر ولایت موقعیت لري ، دپکتیا ولایت مساحت ۶۴۳۲ مربع کیلومتره او نفوس یې نږدې پنځه لکه تنه ښودل شوی دی.

دپکتیا ولایت مرکز دګردیز ښار دی او ولسوالۍ یې سیدکرم ، احمداباد ، جاني خېل ، زرمت ، ارمه ، احمدخېل ، لجه منګل ، شواک ، ګرده ثیرې ، ځاځي اریوب ، څمکني او ډنډوپټان دي.

پکتیا ولایت چې پخوانی نوم یې لویه پکتیا دی خو وروسته ترې دپکتیکا او خوست په نوم ولایات جلا شوي دي ، یوه غرنۍ سیمه ده ، ددې ولایت یوازې دسیدکرم او زرمت سیمې اوارې دي نورې سیمې یې ټولې غرییزې دي ، ددې ولایت زیاتره غرونه په ځنګلونو پوښلي دي ، پکتیا ولایت دشوروي ضد جهاد په مهال دمجاهدینو یو قوي سنګر وو ، او ددې ولایت په غرنیو سیمو کې مجاهدینو ستر جبهات درلودل ، دامریکا په خلاف جهاد کې هم ددې ولایت دمجاهدینو ونډه بارزه او دپام وړ ده ، په دې ولایت کې چې د یرغل له پیل راهیسې وسلوال جهاد پیل شوی لا هم په پوره شدت دوام لري.

دمیدان وردګو ولایت دسیداباد ولسوالۍ اوسیدونکی تکړه مجاهد مولوي عبدالکریم له تیرو دوو کلونو راهیسې دپکتیا ولایت دجهادي مسؤل په حیث دنده اجراء کوي ، نوموړی تازه دپکتیا له سنګرونو راستون شوی دی ، په پکتیا کې دجهادي حالت په اړه مو ورسره مرکه کړې چې ستاسو توجه ورته غواړو !

---

پوښتنه :

محترم مولوي صاحب له هرڅه وړاندې درته هرکلی وایو ، تاسو تازه دجهاد له سنګرونو راستانه

شوي یاست ، او هلته مو په جهادي جبهاتو کې له نږدې خدمت ترسره کړی ، که تر هرڅه وړاندې دپکتیا دجهادي جبهاتو په اړه دسترګو لیدلی حال راسره شریک کړئ ؟

## ځــــــــواب :

الحمد لله رب العلمین والصلوة والسلام علی سید المرسلین وعلی آله واصحابه اجمعین.

تر هرڅه وړاندې له تاسو هم مننه کوم ، د پکتیا ولایت دجهادي حالاتو په اړه باید ووایم چې څومره چې زه دپکتیا په مختلفو ولسوالیو او جهادي ساحاتو باندې وګرځیدلم ، له مجاهدینو سره به جبهاتو کې پاته شوم ، مجاهدین او اولسي خلک مې ولیدل او ددښمن وضعیت مې په مخامخ ډول مطالعه کړ ، ماته معلومه شوه چې الحمد لله جهادي وضعیت دهرکله په پرتله سږ کال مثبت او دمجاهدینو په ګټه وو.

دنظامي چارو غونډې دمجاهدینو ملکي کارونه هم پوره منظم وو ، دمجاهدینو شمیر خورا زیات وو ،له حکومتي مراکزو پرته دپکتیا تقریبا ټولې اطرافي سیمې فتحه شوي دي او دمجاهدینو تر ولکه لاندې دي ، ددې ولایت یوه ولسوالۍ ( ارمه ) خو بشپړه فتحه ده ، چې هیڅ یو عسکر هم په کې شتون نلري ، دنورو ټولو ولسوالیو دمرکز ګردیز په شمول اکثر ساحات دمجاهدینو تر ولکه لاندې دي ، دبیلګې په توګه که دپکتیا لویدیځ ساحات وښیبو له مرکز ګردیز نه نیولې و بیا تر پکتیکا او دغزني ترحدودو پورې دښمن یوازې له ګردیز څخه ښرنې ته په تللې سرک باندې پوستې لري او همدا سرک یې دخپلو اکمالاتو لپاره ټینګ کړی دی ، نور دغه ساحه ټوله دمجاهدینو تر ولکه لاندې ده.

بله مهمه خبره داده چې ددښمن جنګي مورال یو مخ له منځه تللی ، پخوا به موږ لیدل چې دښمن به دمجاهدینو دله منځه وړلو لپاره ډیر تلاشونه کول ، مګر اوس موږ ولیدل چې دوی یوازې دې ته متوجه وو چې څرنګه خپل ځان وساتي ، نور یې هیڅ تعرضي برنامه نه درلوده.

نو الحمد لله عمومي وضعیت ډیر دخوشالۍ وړ وو ، دمجاهدینو په وړاندې کوم مشکلات نه وو ، او د اولسي خلکو همکاري هم له مجاهدینو سره زیات وه.

## پـــــــوښتـــنه :

په دې وروستیو کې دافغانستان له مختلفو سیمو څخه خارجي یرغلګر تښتي که دا راته وویاست چې دپکتیا له څومره سیمو خارجیان تښتیدلي دي ؟

## ځـــــــواب :

په پکتیا کې هم له ډیرو سیمو څخه امریکایي یرغلګر تښتیدلي دي ، له دې جملې په زرمت کې چې پخوا دوی ډیرې قرارګاوې درلودې اوس یوازې په یوه قرارګاه کې پاته دي له نورو وتلي دي ، دپکتیا په ختیځو ولسوالیو څمکني ، ډنډو پټان ،او ځاځیو په سیمه کې دوی یوازې د شهرنو په یوه قرارګاه کې پاته دي ، د ګردیز او خوست ترمنځ د ځدراڼو په غرنیو سیمو کې چې دوی ډیرې قرارګاوې درلودې له هغو ټولو هم تښتیدلي دي.

دامریکایانو له تیښتې وروسته په سیمو باندې دمجاهدینو سلطه ټینګه شوي ده ، د پکتیا دوه مهمې لارې دګردیز ــ غزني او ګردیز ــ څمکنیو لار ددښمن په مخ تړل شوي دي ، په دې لارو په بشپړ ډول دمجاهدینو واک دی ، دغه راز په نورو لارو باندې هم

مجاهدینو کولای شي ، همیشه تلاشي وکړي ، ددښمن افراد تعقیب کړي او دانتقالاتو مخه یې ونیسي.

**پوښتنه :**

هر پسرلی دښمن دخپل پوځي زور ښودلو لپاره هڅه کوي یو لړ عملیات ترسره کړي ، په پکتیا کې ددښمن دعملیاتو ، چاپو او پوځي بریدونه سږنۍ وضعه څرنګه ده ؟

**ځواب :**

وړاندې مې وویل چې دښمن دعملیاتو وس او مورال بایللی دی ، ددښمن هوایي چاپې او شپني عملیات چې پخوا دمجاهدینو دشهادت لوی سبب وو ، اوس قطعا نشته ، دښمن یوازې د بې پیلوټه طیارو له لارې کوښښ کوي مجاهدین په نښه کړي ، مګر څرنګه چې مجاهدین احتیاط کوي نو ددښمن دغه عملیات دومره مؤثر نه دي.

د پوځي عملیاتو په اړه باید ووایم چې سږکال دښمن تراوسه کوم دپام وړ پوځي عملیات نه دي کړي ، یوازې نږدې یوه نیمه میاشت وړاندې دوی دپکتیا په زرمت کې دری ورځني پوځي عملیات اعلان کړل ، خو ددې عملیاتو په مهال چې زه هلته په سیمه کې وم ، کله چې د سهاکو په ساحه کې ددښمن ټانګونه دمجاهدینو سیمې ته داخل شول ، نو پرته له دې چې څه پرمختګ وکړي ، له غرمې تر ماښامه ورباندې ۷ درنې چاودنې وشوې ، ټانګونه او پوځیان یې له منځه لاړل او سخت درانه تلفات ورته ورسیدل ، له همدې چاودنو سره ددښمن عملیات په ټپه ودریدل ، او کوم پرمختګ یې ونه کړای شو ، دښمن په راتلونکو ورځو کې یوازې دومره وکړل چې له سیمې بیرته ځان وباسي او خپل تلفات انتقال کړي.

دغه راز د وزي ځدراڼ ولسوالۍ په سروخیلو سیمه کې داخلي عسکرو نیت درلود ، چې دلته عملیات وکړي او یوه قرارګاه جوړه کړي ، دوی دې سیمې ته په ډیر قوت راغلل ، مګر په کوم ځای چې میشت شوي تراوسه همالته محصور پراته دي ، چې هیڅ لاسته راوړنه هم نلري.

**پوښتنه :**

د ورځینو عملیاتو او ددښمن د تلفاتو په اړه ستاسو نظر څه دی ، چې دپخوا په نسبت دغه کچه زیاته شوې که کمه شوې ده ؟ دغه راز که دمجاهدینو دتلفاتو په اړه هم معلومات راکړئ ؟

**ځواب :**

د ورځنیو عملیاتو کچه خو دهرکله په نسبت زیاته شوې ده ، او ددښمن وضعیت هم ډیر کمزوری شوی دی تردې چې دښمن اوس دځمکې له لارې هیڅ عملیات نه شي کولای ، د ورځنیو عملیاتو کچه دهرکله په نسبت سږکال زیاته ده ، خو البته د خارجي یرغلګرو دمړګ ژوبلې کچه ښایي کمه شوې وي ، ځکه چې خارجي یرغلګر اکثره وتلي دي او کوم یې چې پاته دي هغه په خپلو قرارګاوو کې پراته دي او کله هم له خپلو اډو بهر نه راوزي.

دمجاهدینو دتلفاتو په اړه باید ووایم چې پخوا ته په پام سره دمجاهدینو تلفات تقریبا په نشت حساب وو ، ځکه پخوا ددښمن لخوا زیاتره مؤثر بریدونه چې مجاهدینو ته یې تلفات اړول دشپې دچاپو په ډول ترسره کیدل مګر دامریکایانو په وتلو سره ددوی چاپې هم ختمې شوې دي.

پـــــــوښتــــنه :

امریکایي یرغلګر چې کومې سیمې پرېږدي ، نو تر ډېره ددوی اتکاء پـه اربکیـانو یـا محلي پولیسو بانـدې وي ، چـې پـه ځینـو سیمو کـې دوی لـه هغـه وروسته له سیمو وزي چې دغه وسلوال په خپل ځای پرېږدي ، آیا په پکتیا کې هم دوی داسې کوم پروګرام ترسره کړی او اربکیان یې جوړ کړي دي ؟

ځـــــــواب :

امریکایانو په تیرو څو کلونو کې ډېره هڅه کړې وه چې په پکتیا کې اربکیان جوړ کړي خو دوی نه وو بریالي شوي او دخلکو له خوا څخه د رد جواب ورکړل شوی وو .

مګر په دې وروستیو کې چې امریکایانو یو مخ په تیښته مجبور وو ، پـه تیر مني او ژمي کې چې پـه ساحاتو کې مجاهدینو کم وو ، خارجیانو ډېر کوښښ وکړ چې اربکیـان جوړ کړي ، لـه ټولو کوښښونه سره سره دپکتیـا پـه اکثره ولسوالیو کې دوی بریـالي نـه شول چې داربکیانو په نوم څوک استخدام کړي ، خو یوازې په جاني خیلو ، ځاځیو او څمکنیو ولسوالیو کې دوی په محدود شمیر اربکیان جوړ کړل .

خو ددغو اربکیانو شمیر خورا کم وو پـه جاني خیلو کې دوی یوازې په دریو کلیو کې چې دولسوالۍ دمرکـز دریـو خـواوو تـه پراتـه دي ، دوی اربکیـان جـوړکړل ، خـو الحمد لله دپسرلي پـه راتـګ سره او داسلامي امـارت د دعـوت او ارشـاد د پروګـرام پـه تعمیل سره اوس له دې جملې په جاني خیلو او ځاځیو کـې هغـه اربکیـان چـې دوی جـوړ کـړي وو بیرتـه پـه تسلیمیدو دي .

پـه جـاني خیلـو کـې ددوو کلیـو اربکیـانو خپلـې وسلې مجاهدینو ته وسپارلې ، او پـه تیرو کړنو توبـه ګار شول ، دیوه پاته بل کلي اربکیـانو هم رابطه کړې ده ان شـاءالله پـه نـږدې راتلـونکې کـې بـه هغـه هم لـه مخالفتـه لاس واخلـي پـه ځـاځیو کـې هـم لسـګونه اربکیـانو تسـلیم شوي او لا هم دا بهیر دوام لري چې هره ورځ ګڼ شمیر هغه کسـان چې امریکایانو وسلې ورکړې دي خپلې وسلې مجاهدینو تـه سپاري ، اوس فـی الحـال یـوازې د پکتیـا د څمکنیـو ولسـوالۍ دشهرنو په ساحه کې اربکیان شته ، خو دجاني خیلو او ځاځیو دتسلیمۍ بهیر پـه هغوی هم اثر کړی دی ، او الله تعالی ته امید شته چې په دې ساحه کې بـه هم مشکل رفع شي .

باید ووایم چې دالله تعالی پـه مرسته پـه پکتیا ولایت کې ددښمن دغه دسیسه یو مخ له منځه تللې ده ، او مجاهدین توانیدلي چې ددښمن یو اوږد پروګرام ددعوت په توسط سره ناکام کړي .

پـــــــوښتــــنه :

لـه ولـس سره دمجاهـدینو درابطـې پـه اړه کـه معلومـات راکـړئ چـې آیـا عـام اولـس لـه مجاهـدینو خوښ وو ؟

ځـــــــواب :

داسلامي امـارت مجاهـدین چـې یـوازې نظـامي فعالیتونـه نلري بلکـې داولـس دخدمت او هوسـاینې لپاره یـې قضـایي ، تعلیمـي او اصلاحي خدمتونـه هم شته ، کله چې عام اولس دحکـومتي فسـاد او ظلـم پـه مقابل کې دمجاهدینو شفاف او پـاک خدمتونـه ګوري ، نو د ډېرې خوشالۍ او ویاړ احساس کوي .

په پکتیا ولایت کې که په تعلیمي برخه کې وو ایو دحکومت دواک په سیمو کې هم مکاتب شته او دمجاهدینو دواک په ساحو کې هم ، مګر دمجاهدینو دواک دسیمو تعلیمي نظام په مراتبو تر هغه تعلیمي سیستم ښه دی چې دحکومت ترکنترول لاندې دي ، ځکه دحکومت په ساحو کې د ټولو اداراتو غونډې دمعارف کارکوونکي هم خودسره دي ، که ښوونځي ته استاد یا شاګرد حاضري ورکوي یا یې نه ورکوي ، کومه پوښتنه او مراقبت نشته ، مګر مجاهدین د خپلو ځانګړو مسؤلینو په توسط دمعارف ادارې تر ځانګړې مراقبت او نظارت لاندې ساتلی دي ، همیشه د استادانو او شاګردانو حاضري تعقیبوي ، او د معارف ټول اصول لکه څرنګه چې لازم دي هماغسې تطبیقوي ، له همدې امله خواوس حکومتي چارواکي هم په دې اعتراف لري چې



دمجاهدینو په سیمو کې تعلیمي سیستم ډیر بریالی دی.

دغه راز دقضاء په برخه کې مجاهدین دهرې ولسوالۍ په سطحه ملکي تشکیلات او محاکم لري ، چې عام خلک یې له پریکړو خوښ دي ، ځکه بالمقابل دکرزي حکومت خو په فساد کې لومړی نمبر مقام ګڼلی ، چې اوس وربانديې دهیڅ افغان باور نه دی پاتې.

## پــــــــوښتــــنه :

او په پای کې محترم مولوي صاحب که دپکتیا دخلکو یا دافغانستان دخلکو په نامه کوم پیغام لرئ موږ به یې د خپلې نشریې له لارې ورته ورسوو.

## ځــــــــواب :

د خپل مسلمان اولس په نامه مې پیغام دادی ، چې لکه څرنګه چې دیرغل په تیرو دوولسو کلونو کې یې خپله حوصله او مورال له لاسه ورنکړ په راتلونکي کې هم په خپل جهادي هوډ محکم واوسي ، لکه څرنګه چې مجاهدین اوسیدلي همداسې مجاهدین واوسي.

باید زموږ اولس دې ته متوجه وي ، چې امریکایان ډیر بې رحمه او چالاک دښمنان دي ، دوی چې په افغانستان کې یې شکست خوړلی خامخا به کوښښ وکړي چې د شومو دسیسو په عملي کولو سره له افغانانو بدل واخلي ، زموږ اولس باید ددوی دسایسو ته متوجه وي ، او اجازه ورنه کړي چې دیرغلګرو او دهغوی دلاسپوڅو ارمانونه په دې هیواد کې ترسره شي. ۲۰۱۳/۷/۲۴ میلادي

# دمیډیاتود ډګر او اسلامي نړۍ

فرهاد

صحافت عربي لفظ دی، چې له صحیفې اخستل شوی ،صحیفه هغه لیکل شوي مواد دي، چې وخت په وخت خپریږي، لکه ورځپاڼې، اوونیزې، پنځلسیزې او میاشتنیزې مجلې او جریدې شوې ،دې ټولو ته صحافت ویل کیږي

غرض داچې صحافت دلیکل شویو موادو پورې اړه لري ،خو اوس یواځې دلیکلو موادو پورې خاص ندی، بلکې دمیډیا دواړوډولونو ته که هغه چاپي ده، لکه ورځپاڼې، مجلې، او جریدې او که برېښنایي ده لکه تلویزون اوراډیو شوه صحافت ویل کیږي.

دصحافت داستادانو په وینا: صحافت یا میډیا یواځې دخپل مافي الضمیر اظهار ته نه وایي ،بلکې دخپلو لوستونکو او کتونکو اذهان دخپل مافي الضمیر سره برابر جوړول غوره صحافت دی، که څه هم عموماً په پروپاګند کولو د صحافت او میډیا اطلاق کیږي، خو ددې باوجود پوهان په دې اتفاق لري چې میډیا او صحافت دعامه پوهاوي لپاره تر ټولو ښه مؤثره زریعه ده.

له شک پرته که میډیا وغواړي نو په آسانه کولی شي چې یوه ډله یا تن دعامه مقبولیت معراج ته ورسوي او په مقابل کې یې بله ډله یا تن دومره سپک اوسپور کړي چې هغه په تحت الثری کې و غورځوي.

له زمري نه میږی اوله میږي نه زمری جوړول دمیډیا دچپ لاس کار دی ،هم داوجه ده چې نن سبا میډیا په ټولنه دومره آغیز او تاثیر لري چې خلکو په غیر محسوس ډول خپل اذهان دمیډیا تابع ګرځولي، پربل سپیناوي: په نړۍ کې خلک دمیډیا په فکر ،فکر کړي،دمیډیا په ستر ګو لیدل کړي، دمیډیا په غوږونو اوریدل کړي او دمیډیا دتخمینونو په ترازو تول کړي...

له تاریخه خبر لوستوال په دې حقیقت ښه پوهیږي چې دصحافت، میډیا اوژورنالزم اصطلاحات وروسته ایجاد شوي خو استعمال یې له ډیر پخوا څخه کید، بلکې په کال ۱۸۹۷ز کې چې دنړۍ څخه درې سوه یهودي مفکران راټول شول او په دې یې بحثونه کول چې دوئ څنګه کولی شي چې په ټوله نړۍ مونګلي خښې کړي ؟هغوئ ددې لپاره دوه مهمې پرېکړې وکړې :

لومړی :دټولې نړۍ په تیلو، سرو زرو، او طبعي زخایرو دقبضې مونډلو نظریه یې وړاندې کړه اوددې لپاره یې عملي کړنلاره هم وړاندې کړه.

دوهم: دمیډیا اهمیت منلو ترڅنګ یې اددې لپاره چې میډیا دځان کړي جلا عملي کړنلاره تصویب کړه.

دهغه راوروسته ترننه پورې نړیواله میډیا دیهودو په بشپړ واک او قبضه کې ده اونړۍ کې ترې دیهودي اهدفو او ګټو لپاره دیوې قوي دفاعي او اقدامي وسلې په حیث کار اخلي، دنوري نړۍ داذهانو او فکرونو داړولو او تغیرو لو په لړ کې ورنه اعظمي ګټه پورته کوي

له شک او تر دد پرته او سنی دور دمیډیا او صحافت دور دی له یوولسم ستمبر وروسته دجنګ لپاره دتوپک، توپ، ټانګ اوطیاري په ځای میډیا دقوي او مؤثري وسلې په حیث وکارول

شوه،دیته په پام ویلای شو چې نن ورځ تر ټولو تود جنګ دمیډیا په محاذ روان دی ، دحرب اوضرب په ځای دمیډیا اوصحافت ډګر ډېر تو دی ،اوس بری یا شکست چې څومره تر جنګي تجربو اوپوهې پورې تړلی دی له دې نه زیات دمیډیا ترپروپاګند پورې هم اړه لري ،هم دا میډیاده چې دیوه ډېر بې زړه سړي نه زمری اوله زمري نه ګیدړ جوړولی شي ، له فاتح نه مفتوح اوله مفتوح فاتح جوړولی شي

داسمه ده چې اسلام ددغه ډول صحافت اوپروپاګند اجازه نه ور کوي،خو داهم روښانه ده چې اسلام هیڅکله هم دمیډیا داهمیت نه انکار نه کوي ،اسلام دابلاغ اهمیت نه یوازې منې،بلکې استعمال یې ضروري بولي ،دحق داحقاق اودباطل دابطال لپاره یې موډرنه وسله مني

خوافسوس ! چې دمیډیا میدان اغیارو قبضه کړی دی ،اومسلمانان پکې وروسته پاتې دي ، خوددې باوجود له میدانه تېښته دستونزوحل نده بلکې په میدان کې ودریدل اواستقامت بری دی ،اوس چې دمیډیا بشپړ واک دیهودو اونصاری سره دی ،هغوئ چې هرڅېري هم په مسلمانانودیرغل تابیا ولري نولومړی ترهر څه دمیډیا دڅپو له لارې خپل ځواک اوزور شیندي ،له دې لارې مسلمانان مرعوبوي اودخپلو نارواارادو منلو ته یې اړ کوي ترډېره دهغوئ دغه کوښښونه بریالي هم دي .

په دې حالت کې دهغوئ دمقابلې لپاره داسلامي میډیا یا صحافت اړتیا ډېره زیاته ده ولې ښکاره ده لویدیځ دخپلې میډیا له لارې داسې پوچ تبلیغ اوپروپاګند کوې چې په ترځ کې یې په ښکاره لوړ انساني او اسلامي اخلاق،سیاسي او کلتوري اقدار ترپښولاندې کېږي،یواځې اسلامې نړۍ د کفري نړۍ ددغه یرغل مخه په فعاله اوغښتلي میډیا باندې نیولی شي، چې خپله د پیاوړي اومؤثري میډیا څښتنان شي او داغیارو هر پروپاګند ته غابس ماتوونکی ځواب ووایي

بل څنګه چې نړۍ کې دمیډیاڅخه دفحشاوو ،بې حیاتوب اولوڅتوب لپاره کار اخستل کېږي چې په دې لړ کې یې تاثیر نهایتي مؤثر دی ، په ځانګړي تو ګه دځوان نسل په بې لارې کولو کې مهم نقش لري ،مسلمانان کولی شي چې دیوې غښتلې میډیا په جوړولو سره له خپلو معنوي ارزښتونو دفاع و کړي ، خپل ځوانان دانحراف اوبې لارېتوب څخه وژغوري

بل ستم دادی چې دهمدې کفري میډیا له څپونه وخت په وخت دمسلمانانو په نامه د کارپوهانو په نومونو د ګردیو میزونو په ترځ کې دمسلمانانو په لباس کې داسې افکار خپروي چې هغه داسلام یوډېر مسخ شوی شکل دنړۍ په وړاندې ږدي ،هغوئ په ښکاره داسلامي شریعت حکمونه دخپلو فرسوده اذهانو تابع بولي ، هغوئ ددې په ځای چې نړۍ کې دمظلومو مسلمانانو سره خواخوږي اوهمدردي ښکاره کړي سرچپه دظالم داعیه برحق بولي ، مظلوم مسلمانان ګرم اوپړه وړاندې کوي ددې وجه داده چې هغوئ دپردیو معاش خواره دي ،له خولونه یوازې هغه الفاظ اوتوري وباسي چې په هغو ترې یهودي اونصراني بادران یې خوشحاله کېږي

په دې لړ کې واقعاً کوم اسلامي قلموال اولیکوال چې دمیډیا په پراخ او اوږده میدان کې داسلامي اقدارو څخه ددفاع لپاره لیکنې اوقلمي مبارزه کوي دستاینې اوشابسي ویلو حقدار دي هغوئ په ډېرو کمزورووسائلو دپر مختللې میډیا مقابلې ته ملا تړلې ، دنړۍ نور مسلمانان بادید دهغوئ حوصلې لوړې وساتي ، دهغوئ په نوازش اوپالنه کېدې له بخل اوغفلت څخ کار وانخلي ولې له دې پرته د ۲۱ مه پیړۍ دمسلمانانو دبري لپاره هیڅ چانس نشته ولې د کفر له متحد ځواک سره ډغره ترهغه ناشونې ده څو چې په هغوئ باندې بیر ته دهغوئ له خپلې وسلې اومورچې برید ونشي ، له دې وجې اشده اړتیاده چې دنړۍ اسلامي هېوادونه په دې اړه نور چوپ پاتې نشي، اوپه دې اړه مسؤلانه ګامونه واخلي ،اوپه دې باید غورو کړي چې ولې مسلمانان پرلپسې دذلت په حالت کې قرار لري د کافرانو دبریدونو اویرغلونو ښکار دي ؟او دمیډیا له لارې کېدونکې پروپاګند په مخنیوي کې تر اوسه پورې پاتې دي ؟

سجاد

# داسلام او سیکولرزم ټکر

دسیکولرزم پلویان ځانونه په ډیر ویاړ سره سیکولرستان وایي اوچې واک ته ورسیږو سیکولرزم به خامخا پلي کوو، ولې دسیکولرزم پرته دهیواد ترقي ناشوني ده په دې لړ کې هغوئ خپل دلایل وایي

ددې په مقابل کې دیني ډلې یا حلقې اسلامي نظام غواړي ، هغوئ داسلام سیاسي او اقتصادي نظام دنجات اوفلاح لپاره یواځینی ضامن نظام بولي ولې اسلام الله ( ﷻ ) دانسانانو ددنیا او اخرت دنجات لپاره غوره اوراليږلی دی ، اوله هغو ټولو نیمګړتیاوو اونواقصونه پاک دی چې په سیکولرزم کې شته دي، ولې اسلام دانسانانو خالق جوړ کړی دی ، پکې دهر تبعیض اوتوپیر پرته دټول بشریت مصالح ،سوکالي اوترقي په پام کې نیول شوي ده اودهمدې لپاره دنیا ته رالیږل شوی څو انسانانوته دالله ( ﷻ ) اودهغه درسول ( ﷺ ) دحکمونو په پیروي کې داامن ژوند ور کړي .

اوس رازو دیته چې سیکولرزم څه بلادی ؟ کله اوولې پیدا شو؟

ددې پوښتنو دځوابولو څخه وړاندې دسیکولرزم شالید څیړو : ترڅلورمي عیسوي پیړۍ عیسوي دین ته هیڅ مقبولیت نه وو برخه ،درومي سلطنت دزوال وروسته دعیسویت عروج پیل شو، دروما سلطنت هغه خپل درسمي دین په توګه اومانه ،دهغه وروسته دکلیسانیم سیاسي تنظیمجوړشو ، داچې په مقابل کې یې ځواک نه و ، له دې وجې ورته په اسانه دا

قتدار واکې په لاس ورغلی ،پادریان بې تاجه پاچایان شول او دکلیسا دترقۍ دوره پیل شوه ،تردې پورې چې ټول واکمن دکلیسا تر رحم وکرم لاندې شول ، کلیسا کې میشت پادریان دانسانانو اوخدای ترمنځ رابط ګڼل کېدل، بل لورته داچې عیسوي دین دټولنې اوسیاست په باره کې هیڅ اصول نه درلودل اودعیسی ( ؑ ) لارښوونې یواځې داخلاقي شریعت په اړه راټولې وي ، دکلیسا واکمن اومنصب داران ولګېدل هغوئ پکې دسیاست فلسفه اوټولنیز اصول ځای کړل، هغوئ خپل وضعي قوانین په خلکو مسلط کړل ، له ځانه جوړو قوانینوته یې دخدایي قانون نوم ور کړ ، په دې سره دکلیسا لوی پاپ دعیسویت نړۍ ددونیاوي اوروحاني چاروڅښتن شو، ددې دیني واکمنۍ اصول له دین څخه نه واخستل شوي ، بلکې دکلیسا منصب دارانو لخوا جوړ شوي وو ،داطاعت لپاره دهغوئ لوبه وسله له عیسویت څخه ویستل و، چې هر وخت به یې بې دریغه استعمالوله ،ددې په ضد سخت غبرګونونه راپورته شول ترټولواول دفرانسي پاچا دکلیسا دسلطې څخه ځان ته ازادي ترلاسه کړه ،په دې توګه کرار ، کرار دکلیسا واکمني کمزورې کېده تردې پورې چې بالاخر ختمه شوه .

دقرون وسطی لوی منکرچې دپاپیت شدید مخالف و، هغه "مارسیو اف پیډو" نومید، هغه دکلیسا له تنظیم سره سخت مخالف و ، اودهغه په پالیسي یې سختې نیوکې درلودې هغه دټولو ناخوالو مسؤلیت دکلیسا په غاړه اچوه ، داحقیقت دی

چې د کليسا منصب داران نه يوازې داچې د دينې چارو ټيکه داران وو بلکې له ټولو قوانينو څخه په مصؤنيت کې هر ډول روا او ناروا عيشونه کول د عامو خلکو د اصلاح سره يې چندان علاقه نه لرله.

د کليسا په مخالفو اشخاصو کې يولوى نوم د "ميکا ولی" دی چاچې په لومړي ځل دا په ځرګنده وويل: چې د عيسويت اخلاقي لارښوونې د هېواد د سياسي چارو سره هيڅ اړيکه نلري ، هغه د هېواد د سياسي چارو له دين څخه جلا کولو هڅې پيل کړي، سياست يې له دينه جلا کړ، په دې سره د دواړو لارې هم جلا شوې، دين د شخصي معاملاتو او چارو لپاره خاص کړ ای شو او د هېواد سياست ته د عقل او تجربې له زاوي کتنه پيل شوه ، په دې توګه د سيکولرزم حاصل دا راوزي : سيکولرزم دوه بنسټونه لري ۱. دين له ټولنيزو د چارو سره اړيکه نلري ۲- په پريکړو کې حاکمانه رول به د خلکو یاد هغوئ د استازو وي ، څنګه چې په لويديځ کې خلک د خپلو روا او ناروا د واړو غوښتنو سره سم پريکړي کوي ، د سيکولرزم پلويان دلته هم هغسي هم کول غواړي، په اسلامي هېوادو کې هم د هغه نظام پلي کولو لپاره کوښښونه کوي ، د سيکولرزمطلب دادی چې ټولنه هرڅه غواړي، هره فيصله کوي ،حلال حراموي ، که حرام حلالوي ،مذهب او دين به هغه نه چيلنجوي !

دمسلمانانو په هېوادو کې ازادخيال اوغرب پلوي اسلام ته هم د فاشزم په نظر ګوري ، څنګه چې په لويديځ کې عيسويت ته کتل کېږي هغوئ دلته هم دين د ترقی په وړاندې خنډ بولي ، هغوئ غواړي چې دين اوسياست سره جلا کړي ، دهغوئ په ناقص ګومان دين د ترقی په وړاندې خنډ دی د دې لپاره هيڅ کوم معتول دليل نلري يوازې د دينه چې لويديځ کې دواړه سره جلادي !هم هغه پيروي کوي

هغوئ اسلام ندی مطالعه کړی يوازې دلويديځ ړوند تقليد کوي، حال داچې د اسلام اوعيسويت ترمنځ دزمکې او اسمان توپير دی ، ولې عيسويت د پادريانو دخوساخته نظرونو دين دی او پکې دهغوئ راې ته دوحي په سترګه کتل کېږي او هرچې د سلام معامله ده هغه د دې څخه جلاده، اسلام هيڅکله ذاتي او شخصي معامله نده بلکې د ټول ژوند لپاره پوره ضابطه او قانون دی ، اسلام يوازې ترځو عباداتو او اخلاقياتو محدود ندی ، دلته دهري شعبي لپاره خپل اصول او مقررات تاکلي دي د سياست ، معيشت او معاشرت لپاره روښانه اصول معلوم دي .

اسلام او حکومت له يوبله نه جلا کېدونکي دي ، دواړه له يوبل پرته نشي تم کېدای ، د اسلام مثال ديوي ودانۍ دی ، او حکومت د هغې ودانۍ ساتونکی دی ، دهري ودانۍ چې بنياد نه وي هغه پريوزي، دهري ودانۍ چې ساتونکی نه وي هغه لوټ کېږي، اسلام په يوه سر کې د دوه ستر ګو پشان دی هيڅ سړی دا نه غواړي چې ځما يوه سترګه بس ده دوهمه اوباسئ ،هم دارااز اسلام د مسلمانانو يوازېنۍ متحرک ځواک دی او اسلام د مسلمانانو د اجتماعيت ی مرکزيت دی.

دنړۍ په کومو هېوادو کې چې سيکولر حکومتونه جوړ دي هلته په مسلمانانو باندې زمکه سره تبی ده ، بريتانيه چې سيکولر هېواد دی هلته له مسلمانانو سره بد روش کېږي ، امريکا سيکولر هېواد دی پکې له اسلام او مسلمانانو سره ناوړه امتيازي رويه کېږي ، هندوستان يو سيکولر هېواد دی پکې له مسلمانانو دبغض او له عناد نه ډک چلند کېږي او يوازې د هندو مذهب د ترويج لپاره کار کوي لنډه داچې سيکولرزم يو نا کام او بدنام نظام دی چې هيڅ اخلاقي حدود او قيودات نلري ، پکې هره ناروا روا ګڼل کېږي ،له دې وجې سيکولرستان دي دلته هغه نسخې نه عملي کوي له کومو نه چې خپله دلويديځ د سالم ضمير درلودونکي وګړي دوه پوزوته راغلي ، که دوئ وړپسي ليونې اولالهاند وي وړپسې هلته ته دې وړشي، مسلمانانو او په خاصه افغانانو ته د دغه غير فطري نظام له راوړونه الامان !

# د فقي تاریخ

دوهمه برخه

لیکوال د اسلامي نړۍ ثقه عالم دوکتور محمد حمید الله (رح)
ژباړه شهاب منصور

دا چې اسلامي قانون ګڼ ماخذونه لري او په هغوکې دپخوانیو پیغمبرانو شریعتونه هم راځي ، ددې لپاره یومثال درکوم ، څوځما مفهوم تاسوته په ښه توګه څرګند شي ، دعظیم الشان قرآن په " نورسوره " کې دزنا سزا سل " دُرې " ښودل شوي اوپه اسلامي قانون کې دا الله ( ﷻ ) د استازي ( حضرت محمد ﷺ ) دعمل په اساس دواده کړیو لپاره دزنا په صورت کې د " رجم " یعنې په کاڼو دهغوئ دویشتو ذکر هم راغلی ، اوس پوښتنه داده چې داد " رجم " حکم یعنې د کاڼو په ویشتو دتورنو(مجرمانو) وژلو اساس څه دی؟ ولې په عظیم الشان قرآن کې خو ددې ذکر ندی راغلی ، له دې وجې له ډېرو خلکو سره دا بد ګوماني پیدا کیدای شي چې درجم قانون په اسلام کې نشته ، یواځې سل " دُرې " وهل راغلي اوهمدا بس دي، څوکه غور وکړو یقیناً به جوته به شي چې دا انګیرل په ځای اوسهي ندي ، ځکه په عظیم الشان قرآن کې " بالواسطه " دغه قانون شته ، هغه داسي: قرآن وایي :تاسي دهغو پیغبرانو چې وراندې تیر شوي په قانون عمل وکړئ ! اودرجم په اړه قانون په تورات اوانجیل دواړو کې راغلی و ، رسول ( ﷺ ) هم هغه قانون توثیق او قبول کړی ، داقانون اګرکه په قرآن کې نشته ددې معنی داشوه چې عظیم الشان قرآن هغه قانون ندی منسوخ کړی ، هرکله یې چې ندی منسوخ کړی ،

ددې معنی داده چې هغه پخپل حال پاتې دی ، چې کله پخپل حال پاتې شو نوزمونږ لپاره هم قانون دی ، مونږ ندی جوړ کړی ، بلکې دخدای ( ﷻ ) جوړ کړی قانون دی ، مونږ ته وربانـدې عمل واجب دی، ځکه په تورات کې دواده شویو دزناکولو صورت په اړه په صراحت سره راغلي دي چې هغه دې رجم کړای شي اودهغو لپاره چې ودونه یې نه وي کړي دهغوئ دزنا صورت په اړه دتورات حکم دا دی چې له هغوئ نه دې مالي جرمانه واخستل شي اوبس ، داقانون قرآن منسوخ کړی ، ولې یواځې په جرمانه اخستو بسیا کول بداخلاقي نوره هم زیاتوي ، په ځای یې بل مؤثر قانون اړتیا وه ، نو دا حکم یې وکړ چې سل " دُرې " دي ووهل شي ، هرکله چې مونږ داموموچې په قرآن مجید کې یوپخوانی حکم دسکوت په غوره کولو سره پخپل حال پرېښودل شوی اوبله برخه یې په صراحت سره منسوخ کړای شوي ، نودادواړه داسلامي قانون برخه شوي اوپه دواړو باندې عمل واجب دی ، ځما موضوع داوه چې دپخوانیو پیغمبرانو په شریعتونو باندې دمسلمانانو لپاره هم عمل واجب دی ، خوپه دوه شرطونو: یوداچې قرآن مجید پکې ترمیم اوبدلون نه وي کړی ، بل مونږ ته دبااعتماده طُرقو په واسطه رسیدلی وي .

اوس مونږ داسلامي قانون دترقی په اړه یوبل اړخ را اخلو! دقانون څه برخه په ښه صراحت سره قانون جوړونکي یعنې الله( ﷻ ) اودهغه رسول ( ﷺ ) ترمونږ را رسولي ، دهغه په جوړولو کې انسان کوم رول نلري، که په قرآن اوحدیث کې سکوت (چوپتیا) شوی و، څنګ چې ما وراندې دمعاذبن جبل ( رض ) دحدیث راوړو په مهال وویلي چې : په دغسي حالت کې بیا اجتهاد کولو ته ضرورت لرو ، یعنې دتفکر اوخپل سلیم عقل له پلوه که مونږ کومه قاعده استنباط کوو ، هغه به مناسبه وي ، زمونږ عقل اوزمونږ ضمیر به یې قبلوي ، داکار قانوپوهان کولی شي بل څوک نه ، فرض کړئ یوطبیب دی د قانون جوړولو سره هغه

سروکارنلري ،یا ډوډۍ پخونکي (نانبای) له قانون جوړولو سره هیڅ نسبت نشته هم داسي نور... دقانون جوړولو کار دقانون دمتخصصنو دنده ده دبل چاکارندی ، له دې وجې مونږ ګوروچې په اسلامي ټولنه کې دقانون جوړولو کار څوک کوي اوپه قانون پوهیدونکي څوک دي،؟ دادوه ډوله خلک دي یوواکمنه محکمه ، دویم فقهاء اومفتیان له چا نه چې مونږ تل دقانون په اړه پوښتنې کوو، چې دفلانی مسئلي په اړه څه حکم یاقانون دی ؟،هغوئ مونږ ته ښیي چې دااسلامي قانون یاحکم دی ، خو فقیه اومفتي نفاذ نشي کولی، ددې توپیر باوجود دواړه ذیلي قانون جوړوي، داساسي قانون حیثیت خو دقرآن اوحدیث دی ، خوکه کله قرآن اوحدیث ساکت (چوپ وي) هلته هغوئ داجتهاد اواستنباط له لارې دقانون معلومو کوښښونه کوي ، هغوئ مونږ ته د قانون ښودنه هم کوي اوپه مونږ د باندې یې نفاذ هم کوي !

یومثال تاسوته درکوم په قرآن مجید کې دغله لپاره سزا ټاکلې ده ، خوکه یوتن کفن پټ کړي ، یعنې دیوداسي چا څخه مال واخلي چې هغه دفاع نشي کولی یعنې دکوم مړي قبر پرانیزي په قبر کې دننه دهغه نه کفن وباسي ایا دېته هم غلا ویل کېږي ؟ زمونږفقهاء وایي:چې داغله نده ، پوښتنه داده چې دکفن غلا کولو سزا څه ده ؟ایا هغه سزا ده کومه چې دعامي غلا لپاره ده ،که ددې لپاره کوم بل قانون ته اړتیا ده ؟ په دې کې سیوا داستنباط او اجتهاد ،دغور وفکر کولو اودقانون معلومولوپرته بل صورت ممکن ندی، ولې چې په قرآن مجید کې ددې ذکر ندی راغلی، په دې صورت کې زمونږفقهاء استنباط کوي اوداستنباط لپاره دقیاس څخه کار اخلي ، زه تفصیلاتوته نه زم یوائې تاسوته مثالونه درکوم څو پوشوچې په کومو، کوموصورتونو کې فقهاوو ،مفتیانو اوقاضیانوته دقانون معلومولو اوپه قانون کې دزیاتوني اړتیا راځي ؟ ولې دغلا په اړه قانون معلوم و خو دکفن پټولو په اړه قانون نه و، هغه چې کله زمونږ قاضي اومفتي معلوم کړ ، نوزمونږدقانون جز شو، په دې سره زمونږ په قانون کې زیاتونه راغله ، داکار درسول الله (ﷺ) په دور کې هم لیدل کېږي څنګ چې په یوه حدیث کې په صراحت سره راغلي :رسول الله (ﷺ) خلکوته وویل:که دهر څېز په اړه معلومات غواړئ نوله ابوبکر صدیق نه پوښتنه کوئ ، حضرت ابوبکر صدیق (رض)قانون پوو، صحابه کرامو ددې لپاره چې په هره مسئله کې رسول الله (ﷺ) ته زحمت ورنکړي، تلل له ابوبکر صدیق (رض) څخه یې پوښتل ،هغه ته یوډول اجازت و ، چې دوړ، وړو مسائلو په اړه فتوا ورکړي ، که مسئله به مشکله وه ابوبکر صدیق (رض) به هغوئ ته ویلي :تاسي انتظار شئ !زه به په دې اړه له رسول الله (ﷺ) څخه پوښتنه کوم بیا به ووایم درته ، اوکه له وړاندې به ورته معلومه وه هغوئ ته یې ویلي: په دې اړه درسول الله داحکم کړی دی ، په دې عمل کوه ،نود قضا او فیصلو لړۍ له نبوي دور څخه شروع شوي ، ماته دانده معلومه چې دمفتیانو شمېر څونه وو؟ یوائې یوه واقعه ځما په ذهن کې شته هغه ما بیان کړه ، دحضرت ابوبکر صدیق (رض) په اړه تاریخونوکې په صراحت سره راغلي چې هغه رسول الله (رض) مفتي ټاکلی وه ، ممکن نورصحابه به هم وو ، اوپاني شوقاضیان داسلامي سلطنت په پراختیا سره دهغوئ په شمېر کې زیاتوالی راته ، په خاص توګه یمن چې یولوی ولایت و اوپه ذهني لحاظ هغه مهال پرمختللي سیمه وه ،هلته خلکو کوچیتوب نه کاوه په کلیو کې اوسیدل ،سوداګري اوکرهنه یې کوله ،وله دې وجې یمن ته دزیاتو چاروا کو دلیږلو یادونه راغلي چې پکې والیان اونور چاروا کې هم راځي ، په هغوئ کې دیوه یادونه اوس وشوه یعنې معاذ بن جبل (رض) چې هغه والي هم و اوقاضی هم ، خو په دې سربېره دیوبل چاروا کې " عمروبن حزم " په اړه هم راغلي چې نوموړی دتعلیم مسؤل هم و ، دطبري په وینا: دهغه دنده دا هم وه چې کلي په کلي به ګرځیده خلکوته به زده کړي ورښودي ، غالبا په هرځای کې به یې مدرسي پرانستلي ، دیوه ځای خلکوته دعظیم الشان قرآن ښودو وروسته به بل کلي ته لاړ هلته په ورته توګه خلکوته دقرآن زده کړي ورکولي ،بیا به کلي ته روان شو وپه هرصورت دطبري الفاظ دي :" کان ینتقل من امارة عامل الی عامل " چې هغه به له یوې سیمي څخه بلې سیمي ته ،ته اوکار یې خلکوته زده کړي ښودل و، دهغو قاضیانو په لړ کې چې یمن ته لیږل شوي یوابو موسی اشعري (رض) هم و ، په ځانګړې توګه دهغه یادونه ځکه کووم چې دهغه تقرر پانه هم په تاریخ کې خوندې ده ، معلومیږي چې هغه زمانه کې دنظم ونسق اصول دانه وه چې تنها یوتن دې یوځای ته لاړشي ، ځنګه چې حمید الله بهالپورته راغی اوویلي یې : دلیکچر ورکولو لپاره راغلی یم ، دپوهنتون رئس هم خبر نه و ، ددې برخلاف له مرکزیعنې پلازمینې څخه به یوه

لیکل شوي پاڼه نومول شوي والي ته ورکول کېده یولیک به دهغه سیمي دخلکو په نامه هم وه ، په هغه کې به لیکل شوي وه فلانی تن موتاسي ته دوالي یاقاضی یاعامل په توګه درولیږه ،هرکله چې هغه درشي اطاعت یې وکړئ ،دهغه اطاعت آن څما اطاعت دی! اوقاضیانودتقرر لپاره چې کومه پاڼه به ورکول کېده په هغه کې به دهغوئ دځینو فرایضو یادونه هم شوي وه ، دغه طریقه مونږته درسول الله (ﷺ) په وخت کې هم په لاس راځي ، حضرت عمروبن حزم (رض) ته ورکړل شوی لاربښودپاڼه نن هم خوندي ده ، دحضرت ابوموسی اشعري (رض) په اړه ابن سعد لیکلي چې هغه په لیک لوست نه پوهید، درسول الله (ﷺ) تروفات پورې امي و، دهغه وروسته حضرت عمر (رض) دنوموړي دننه دسترو صلاحیتونو اودهغه پراخو تجربو په وجه چې درسول الله (ﷺ) په زمانه کې یې په مختلفو دندو کارکړی و، دعراق دفتح وروسته یې نوموړی دبصري دوالي په توګه مقرر کړ ،داچې خپله نوموړي ته لیک لوست نه وياد ، له دې وجې یې یو لوستی اوهوښیار سړی دځان لپاره دمنشي په توګه وګوماره،چې هغه په دین عیسایي و ، یوځل حضرت عمر (رض) ابوموسی اشعري (رض) دځه مشوري لپاره مديني منورې ته وغوښته ،نوموړی له ځان سره خپل منشي هم مدينې بوته ، خپله دحضرت عمر (رض) دليدو لپاره دننه مسجد ته لاړ اومنشي یې بیرون پریښود ، عمر(رض) ترې وپوښتل ایا تاخپل منشي له ځان سره ندی راوستی هغه چیری دی ؟ وي ويل بیرون دی ،عمر(رض) وپوښتل مسجد ته ولي نه راځي ؟ وي ويل عیسایي دی ، عمر(رض) ته دامناسب ښکاره نشوه سملاسي یې وويل ته ! خپل منشي بدل کړه ولې هغه مهال چې بصره نوي فتحه شوي وه ، پکې بشپړ امنيت نه وراغلی ، یووالي چې ورته دګڼو چارو واکونه ورکړل شوي اوهره پریکړه یې سملاسي پلي کولی شي ، هغه به منشي ته دیوقضيې په اړه دیوځه لیکلو ویلي اومعلومه نه وه چې منشي څه لیکل ؟، دوالي له مهر سره یوځای دهغه لیکل لیږل کیدل ، له دې وجې داحتیاط کولو اړتیا زیاته وه ،حضرت عمر (رض) ورته حکم وکړچې خپل منشي بدل کړه،نن هم که بالفرض دکوم اسلامي هیواد ولسمشر ته لیک لوست نه راځي داحتیاط غوښتنه داده چې هغه هیڅکله باید هندو، روسی ، امریکایي اونورد منشي په توګه مقرر نکړي البته حضرت عمر (رض) په نورورسمي چاروکې له عیسویانو هم کار اخیستی ، یعنې داړتیا په وخت یې له نا مسلمانو څخه هم کار اخیستی ، خوپه هر هغه ځای کې چې سلیم عقل ددې غوښتونکی وي چې په هغوئ دې باورونکړای شي هلته بیا احتیاط پکاردی داسي ګڼ مثالونه شته د" هرمز" په نوم یوایرانی و، له هغه سره د به حضرت عمر (رض) په سیاسي اوجنګي معاملاتو کې مشوري کولي.

درسول الله (ﷺ) په زمانه کې داسلامي قانون دترقی لپاره چې کوم لومړني مأخذونه و ، هغه ماپه ګوته کړل دهغو څخه علاوه په اسلامي قانون کې دوه څېزونه نورهم زيات شول په هغو کې یومفتي دویم قاضي ،قاضیانوته عموما به په نویو مسائلو کې دنویو قوانینو جوړولو اړتیا پیښیده ،قضایا به دهغوئ په وړاندې راتلل ،دهري قضيي محل ، حالات اومحتوا به له بلي څخه مختلفه وه چې له هغي سره سم به پریکړي ته اړتیاوه ، داسي ګڼ مثالونه په تاریخ کې شته چې هغو والیانواوقاضیانوبه چې په لري سیموکې به میشت ول یابه یې خپله په لیک کې له رسول الله (ﷺ) څخه پوښتل چې دفلاني حالت په اړه څه پکاردي ؟ اوداسي مثالونه شته چې هغوولایانواوقاضیانوبه دخپل صوابدید له مخي هم پریکړي کولي، ددې اطلاع به رسول الله (ﷺ) ته هم رسیده که رسول الله () ته به دهغوئ کومه پریکړه مناسب ښکاره نشوه ،سملاسي به یې دردولو حکم وکړ، ددې دویم ډول یومثال تاسوته در کووم چې یوتن وژل شي ،دهغه دیت چاته ورکړای شي ؟ پخوا په عربو کې رواج و چې یوتن به قتل شو ، دیت به دمقتول نارینه خپلوانوته ورکول کېده یعنې څوی ، پلار ، وراره، تره اونوروته ... دمقتول میرمني ته یې څه نه ورکول ، ددې اطلاع به رسول الله (ﷺ) ته کیده ، رسول الله (%) دیمن ضحاک په نوم یووالي ته دقاضي دپریکړي په اړه لیک واستاو چې دفلاني تن ددیت څخه دهغه میرمني ته هم هغومره ورکول پکاردي ، خومره چې دهغې دمیراث حق دی، په قرآن مجید کې ددې ذکر نشته، خوچې داپیښه نه وه شوي چاته یې حکم نه ومعلوم ،درسول الله (ﷺ) په حکم سره دیوه نوي حکم زیاتونه راغله

مونږ وینو درسول الله (ﷺ) په پاک ژوند کې داسلامي قانون دوه نه تغیر منونکي مأخذونه یعنې قرآن اوحدیث بشپړېږي، دقانونې لید له پلوه چې هره نوي مسئله به پیداشوه دهغې دحلولو لپاره به مسلمانانولومړی عظیم الشان قرآن اوحدیث ته رجوع کوله که په هغو دواړو کې به یې کوم حل ونه موندل شو دپیغمبر (ﷺ) له لوري په ورکړل شوي اصل یعنې اجتهاد یې عمل کاوه ، دغه اصول وروسته مسلمانانو ته ډېر په کار اغلل ، کنه اسلامي قانون به منجمد پاتي و، اومسلمانانوته په ناکافي کیدو به هغوئ دنااسلامي قوانینو غوره کولو ته اړشوي وای داجتهاد له لارې دهر نوي څېز په اړه دقانون جوړولو فرصت پیداشو

په همدې توگه دقاضیانوپه نوم دحضرت عمر (رض) یولیک مونږته په لاس راغلی په کومکې چې داحکم شته چې دفیصلي کولو څخه وړاندې مشوره هم کوئ ، داسې نه چې دخپلې خوښې سره سم پریکړي کوئ ، که تاسوته قانون معلوم نه و، نوپخپله هم فکروکړئ ، اوله هغو علماوو سره چې له تاسو سره دي هم مشوره وکړئ !دایوډول داجتماعی اجتهاد صورت هم کیدای شي ، پخپله دخلفاوو همدا معمول وچې حضرت ابوبکرصدیق حضرت عمر ، حضرت عثمان اودحضرت علی (رض) په اړه مونږته ډېر په لاس راځي چې هره پیچلي قضیه به ورته مخ ته راغله ،چې په اړه به یې په عظیم الشان قرآن اوحدیث کې په څرگنده کوم قانون ورته په نظر نه ورته ، نوعامه غونډه به یې وکړه ، اذان به وشو خلک به په مندو، مندومسجدته لاړل ، مسجد کې به خلیفه هغوئ ته وویلې : اوترې وبه یې پوښتل چې دفلانی قضیي په اړه ستاسي رایه څه ده ؟ په دې غونډه کې هرتن دراي ورکولو لپاره مجاز و، که لوی اوکه کوچنی ، نربه اوکه ښځه دهریوه سره مشوره کیده ، دمیرمنو یادونه مې ځکه وکړه چېددې مثال مونږته دحضرت عمر (رض) په زمانه کې په لاس رازي هلته داستونزه وه چې دلور دنکاح څخه وړاندې به خلکو ډېر مهر غوښته اوزوم ته به یې ویلې : دومره پیسي راکړه بیا به دنکاح عقد کېږي ،حضرت عمر (رض) ولیدل چې دزیات شمېرانجونو سرونه له دې امله سپین شي خودنکاح موقع ونه مومي ،حکم یې وکړ چې ددومره پیسوڅخه زیاتي څوک نه غواړي ، عمر (رض) دوخت خلیفه اودلوړي درجي صحابي و، نورو صحابه وو وړاندې نیوکه ونکړه ، په دې اعلان سره مسجد کې یوه میرمن پورته شوه وي ویل :اي عمره ! ته هیڅکله دداسي حکم کولو حق نلري ، داقانون نامناسب دی ، هغه حیران شوترې پوښتنه کوي ،ولې ناروادی ؟ هغې سپین سري میرمني وویلې :په قرآن مجید کې (۴:۲۲)راغلي دي که تاسي دښځې په مهر کې " یوقنطار " یعنې ډېره لویه خزانه ورکړي هم وي دطلاق ورکولو په وخت کې هغه بیرته مه غواړئ ،کله چې الله ( ﷻ ) دا اجازت ورکړی دی چې په مهر کې قنطار هم ورکول کیدای شي نوعمر څه حق لري چې هغه دي منسوخ کړي ، عمر (رض) ډېر له خدیه ډاریدونکی انسان و، ژرپورته شو وي یلي ، عمر نه و پوشوی سپین سري میرمني پوی کړ ، ددې خبره سهي ده زه خپل حکم بیرته اخلم لنډه داچې دمشوري اوراي ورکولوعام اجازت و ، پکې ټول برابرو، که دچاپه رایه به دخلکواتفاق راغی په هغه به یې عمل کاوه ، نوپه هرصورت درسول الله (ﷺ) درحلت څخه وروسته دراشدینو خلفاوو په دور کې داجتماعي مشوري ،دقاضیانو اومفتیانو له لوري دانفرادي اراوو بیلگې لیدل کېږي

داچې مسلمانان په پیل کې دنړی درې وچوته ورسیدل ، دلسگونو قومونو سره یې اړیکې جوړشول په رعایاوو کې یې دلس پنځلس ادیانو منونکي وو ، چې دهغوئ عادتونه له یوبل څخه جلاوو، له دې وجې نوي ،نوي قضیي به یې مخ ته راتلي ، دکومو په اړه به چې فیصلي هم مختلفي وي ،دحضرت عثمان (رض) دزمانې یوه واقعه ده :عظم الشان قرآن دنامسلمانو رعایاوو څخه دجزي اخستو حکم کړی دی اوهلته داهل کتابو ذکر دی ، دعثمان (رض) په زمانه کې دشمالي افریقا هغه سیمي هم فتح شوي ، چې پکې بربري قوم میشت و ، پوښتنه دا پیدا شوه چې ایا له بربرقوم هم جزیه واخلو اوکه نه ؟ نوربیا




شهید زوی ............

# په مصر کې دمحمد مرسي دولت ولې اوځنګه ړنګ شو؟

په مصر کې دقبطي عیسایانو ، دداخلي اوخارجي سیکولر ، لبرال اوتش په نامه روشنفکرانو له لورې دمصنوعي راپیدا کړی شوي سیاسي بحران پایله هماغه شوه دکومې په باره کې چې دنېږدې نه دوضعیت اکثرو څارونکوویره ښکاره کوله .

دلسګونو کلونو تاریخي کوښښونو اوقربانیوو نه پس دلویدیځ په ژبه له جمهوري لارې دولس درایو په نتیجه کې دالاخوان المسلمون درامنځته شوی دولت ایله کال پوره شوی و چې دمصر دپخواني دیکتاتور حسنی مبارک دپلویانو ، قبطي عیسایانو ، دسیکولر ، لبرال ، تش په نامه پراخ بنسټوروشنفکرانو اومنځلاروسیاستوالو او قاضیانو په ګډو هڅو اودفوځ دعجلت اوبې اصولۍ په ډک اقدام له منځه ولاړ .

دجولای په ۴ مه نېټه فوځ دمصر منتخب ولسمشرډاکټر محمد مرسي له خپل منصب نه لرې اوپرځای یې دهېواد مشرقاضي , ,عدلي منصور ،، چې یو قبطي عیسایي دی دهېوادعبوري مشروټاکه ؛ بیایې لویدیځ ته دخورانېږدې سیکولر سیاستوال اوداپوزیسیون مشر محمد البرادعي نوم دلومړي وزارت لپاره وړاندې کړخوپرهغه داتفاق نه راتللو له امله حازم البیلاوي دمصرنوی عبوري ولسمشرشوچې دسوګند پورته کولو نه پس یې نوې کابینه هم تشکیل کړه .

داطلاعاتوله مخې فوځ دولسمشر تر څنګ داخوان المسلمین ګڼ شمېرنورمشران هم دنیولونه پس نامعلوم ځای ته انتقال کړیدي اوداخوان المسلمین دحمایت په توریې ۲۵ تلویزوني کانالونه بند کړي اوکارکوونکي یې زندانونوته لېږدولي دي .

کله چې دجون په ۳۰ مه نېټه په التحریر څلورلارې کې دولسمشر محمد مرسي پرضد ستره مظاهره روانه وه په همدې وخت کې قاهره دیوبل التحریر میدان شاهده وه چې هغه درابعه العدویه (رابعه بصریه) جومات مخې ته میدان ، ترې چارچېره پراخه سرکونه اوځنګ ته یې سترڅلورلارې و ؛ دالتحریرڅلورلارې نه څوکیلو متره لرې پدې دوهم میدان کې د۶ میلیونونه زیات راټول شوي مسلمانان دمحمدمرسي دتائید اوحمایت ښکاره کولوپه موخه له کورونو راوتلي وو ؛ دفوځ له لورې پرمحمد مرسي دکودتاسره سم دازادۍ پدې دوهم میدان کې راټولو شویو مسلمانانو په احتجاج لاس پورې کړ ، دفوځ اوقضا پرضد یې نارې پورته کړې اودمحمدمرسي دراخوشې کېدواودقانوني دولت دبېرته اعلانولوکلکه غوښتنه یې کوله ، سبانۍ ورځ چې دجولای ۵ مه نېټه او دجمعې ورځ وه نودمحمدمرسي په پلوۍ کې دجمعې دلمانځه نه پس په ټول هېواد کې دقاهرې نه مظاهرې پیل شوې ؛ دقاهرې مظاهره چیان چې کله دفوځ ترمرکزي قوماندانۍ ورورسېدل نوپرې فوځ ناترسه ډزې پیل کړې چې له امله یې ۳تنان ځای پر ځای مړه اوپه لسګونو ټپیان شول ، ددې نه پس بیا دجولای په ۸مې نېټې دفوځ له لورې دمحمدمرسي په پلویانو د ډزو ډېره بده پیښه رامنځته شوه کله چې دصدارتي ګارد دودانۍ

مخې ته دفوځ دناقانونه کړنې پر ضد داعتراض په موخه پر ناستو تنانو فوځ ناترسه ډزې وکړې ؛ دعيني شاهدانو اودروغتون دذرائعو له لورې دخپروشويو ارقامو له مخې په دې پېښه کې تر ۵۰ پورې تنان شهيدان اوګڼ شمېر نور ټپيان شوي وو ؛ ددې نه پس په ټول ښار اوبيا دښارنه بېرون په ټول هېواد کې داخوان المسلمين اوفوځ ترمنځ نښتې پيل شوې ؛ سيکولر اولبرال ډلې دفوځ سره اوږه په اوږه پراخوان المسلمين او دمحمد مرسي په حمايت کې راوتلو مسلمانانو باندې ناترسه ډزې کوي اوبد بختي اوشقاوت يې تردې حده رسېدلې چې دجمعې په ورځ دجمعې دلمانځه پرمهال دسجدې په حالت کې يې پرلمونځ کونکو نابېره ډزې پيل کړې چې پکې ګڼ شمېر سړي مېرمنې اوکوچنيان شهيدان اوټپيان شول ؛ ورپسې د دوشنبې په ورځ دجولای په پنځلسمې نېټې دسهار دلمانځه پرمهال پرلمونځ کونکو دفوځ له لورې دډزوپه نتيجه کې د ۶۰ نه زيات لمونځ کونکي شهيدان شول .

خوددې ځوانانو ، مېرمنو ، کوچنيانو اومشرانوعزم اوهمت ته سلام چې ظلم اووحشت ته دسرونوټيټولو پرځای خلاصې سينې فوځې ټانکونوته نېږدې ورغلل اوهمدا يوه ناره يې پورته کوله چې ز موږ قانوني منتخب ولسمشر محمدمرسي دې بېرته په خپلې دندې وګومارل شي اوفوځ دې بېرته خپلوبارکونو اوخپلو مرکزونوته دننه شي .

بايدپه تأسف سره وواېو چې دمحمدمرسي دناقانونه معزولوالي په سررامنځته شوې ګډوډې نه يواځې داچې پای ته ونه رسېده بلکې ورځ تربلې زياته اوخورا خطرناکه شوه ، دقاهرې نه دسکندريه ، اسماعيليه ، اسوان اونورو سترو ښارونوته اودسترو ښارونونه دمصر کلي کلي ته وغځېده اوپه لږوخت کې يې داسې بحراني شکل غوره کړچې راوتل به ترې ډېر لوی وخت وغواړي .

په مصر کې د ۲۰۱۱ کال دجنورۍ په ۱۵ مې نېټې دپخواني ديکتاتور پرضد دپيل شوی ملي پاڅون په نتيجه کې دولسي فشار له کبله دمصر فوځ د۲۰۱۱ کال په فرورۍ کې دپخواني ديکتاتورحکومت ړنګ اوديکتاتوريې له واکه وغورځولو .

د ۶۰ کلن مسلط شوي ديکتاتوري نظام دړنګېدونه پس دپروګرام سره سم د ۲۰۱۲ کال دجون په ۱۵ مې نېټې په ترسره شويوانتخاباتو کې بريالي شوي محمدمرسي دجون په ۳۰ مې نېټې دمصر په تاريخ کې دترټولو اول منتخب ولسمشر په صفت دوفادی لوړه وکړه ؛ دالله تعالی لوی شان ته ګوره چې دمليونونو تنانو په رايو دبريالي شوي ولسمشر تړاو دالاخوان المسلمون په نوم دهماغه ګوند سره و دکوم دځپلو لپاره چې پردوئ دنيمې پېړۍ نه په زياتې مودې کې له حده زيات ظلمونه شويدي ، داهم يوپه زړه پورې اتفاق دی چې دنرم طبيعت څښتن محمدمرسي دولسمشرۍ لپاره اصل کانديدنه و ؛ اصل کانديد دده په پرتله دتېز خوی لرونکی داخوان المسلمون مرستيال مرشد خيرت الشاطر و خودفوځي عبوري دولت له لورې چې په انتخاباتو کې هغه دګډون کولونه منع کړای شو نومحمدمرسي اصل کانديد وکرځېد .

په دې خوراسختې مقابلې کې يولورته دحسني مبارک دادارې وروستی لومړی وزير اودهوايي ځواکونو پخوانی وزير جنرال احمدشفيق ،د ديکتاتورټول پاتې شوني ، سيکولر اولبرال ټول ځواکونه اودانتخاباتو لپاره دننه اوبهر کې ځانګړی شوي ستره بوديجه وه اوبل لورته داخوان المسلمون اونورودينې ګوندونو تر څنګ د۲۰۱۱ په جنورۍ کې دحسني مبارپرضد راوتلي ځوانان وو .

په سبا انتخابات ووچې ماښام ۶ نيمې بجې دمحاکمو يوې دستوري کمېټې هغه پارلمان لغوه اعلان کړ کوم چې ايله څو اوونۍ وړاندې دعامو پارلماني انتخاباتو په نتيجه کې دولس له لورې منتخب شوی و ، او ايله دريمه برخه يې سيکولر نمايندګان وونوردټولوولسي نمايندګانوتړاوې داخوان المسلمين اونورو ديني ګوندونو سره و

دولسمشريزوټاکنو نه ايله يوه ورځ وړاندې دپارلمان ړنګولو دځان سره داپيغام لرلوچې داخوان المسلمين کانديد محمد مرسي به بريالیتوب ته پرې نه ښودل شي ؛ ددې کاريوهدف داهم وچې دګډو کانديدانو تر منځ داوږدې اوسختې مقابلې اودزياتولګښتونو نه پس درامنځته شوي پارلمان په ړنګولوبه ولس لاروکوڅوته راووځي ګډوډې به رامنځته شي اوپدې پلمه به ولسمشريز انتخابات ځنډول شي خوددوئ له بده مرغه چې دا ارمان يې پوره نه شو ؛ اخوان المسلمون دزغم نه کار واخست اوله خپلوپلويانويې وغوښتل چې خپله ټوله توجه دې دولسمشرۍ اوپکې دخپل کانديد کاميابولو لورته واړوي .

لنډه داچې دانتخاباتو دنه کېدلو لپاره دټولو کوښښونو سره سره هم انتخابات په خپل وخت ترسره شول اوپکې محمد مرسي بریالی شو خو دهغه دولسمشر جوړېدو نه لاوړاندې دهغه دناکام ښوولولپاره پلانونه جوړشوي ووچې دبریالیتوب په هماغه ړومبۍ ورځ یې لړۍ عملاًپیل شوه ؛ داصولوله مخې باید ولسمشر دپارلمان په مخکې لوړه کړې وای خوچې پارلمان لاله وړاندې ړنګ شوی ونوقانون پوهانوویل چې ددولت دعبوري مشر یادقاضي القضاة په وړاندې لوړه کول قانوني غوښتنه ده خو اصرار وشو چې نه ! کومې محکمې چې څوورځې دمخه پارلمان له منځه وړی وو دهماغې محکمې دقاضیانو په وړاندې به ولسمشر لوړه کوي ؛ ولسمشر محمد مرسي ، ټول اخوان المسلمین اونورو دیني متحدوګوندونو بیا نرمي ښکاره کړه اومحمدمرسي دپارلمان دهماغو قاتلو قاضیانوترمخه لوړې ته تیارشو؛ سره له دې چې محمدمرسي دلته له لوړې وړاندې دالتحریر ډګرته تللی اوهورې یې دراټولوشویو سونوزروتنانوپه مخکې سوګند پورته کړی اوویلي ووچې اصل پارلمان ولس دی .

داخو دولسمشر محمد مرسي ړومبۍ ورځ وه ددې نه پس دهغه دواکمنۍ ټول کال په بحرانونو کې تېرشو ؛ یوبحران به لاختم نه وچې بل به سرراپورته کړ ځکه چې په تاریخي اوجغرافیایي لحاظ په خورامهم هېوادمصر کې داسلام خوښوکامیابي ، دموروثي ،شخصي ، اودیکتاتور دولت ختمېدل اوپرځای یې داسلام خوښي ، ولس خوښي ، دولس دامېدونوترجماني کونکي اودولس دامېدونو پوره کونکي دولت راتلل خونه اسرائیلو ، امریکا اونورلویدیځ ته دزغم وړو اونه هم دحسني مبارک پاتې شونواونورو سیکولر ګوندونو اواشخاصوته ؛ ځکه استعمارګرو اوداستعمار دلاس آلو محمد مرسي دیوې ورځې لپاره هم په ارام پرېنښودلو ، دهغه په وړاندې یې قدم په قدم دمشکلاتو دایجادولو هڅې وکړې اود۲۰۱۳ کال دجون تر۳۰ مې نېټې رسېدلوپدې تېریوکال کې داسې په لسګونو موکې راغلې چې پکې دټول هېواد دامن خرابولولپاره ستر اقدامات وشول .

دمصر دناپېیلو رسنیو له لورې دخپروشویو ارقامو له مخې په تېر دې یوکال کې دحسني مبارک دپاتې شونواونورو سیکولر ډلونه جوړ اتحاد دولسمشر ددولت پرضد ۵۰ ستر پلانونه په کارواچول ، ۵۷۸۲ ددولت ضد مظاهرې یې وکړې ۲۴ ډېرسترلاریونونه یې وویستل ، اودوړوډلوپه لاس یې ۷۷۰۹ احتجاجونه اواحتسابونه رامنځته کړل .

دمرسي دولسمشرجوړېدو ایله څوورځې تېرې شوې وې چې روژه ماتي ته ناستومصري عسګروباندې دنامعلومه وسله والوله لورې دحملې په نتیجه کې ۱۴ عسکر ووژل شول دحملې نه څودقیقې پس اسرائیلي طیاروپه حمله کوونکو بمباروکړ اوحقیقت ته درسېدوټولې نښې یې له منځه یوړې ، ددې حملې سره سم په ټول مصر کې مخالفینو غوغاجوړه کړه اوداتبلیغات یې پیل کړل چې مرسي ناکام دی په هېوادکې چې فوځ په امن کې ندی نوربه څوک په امن کې شي ؟ خومرسي ددې تبلیغاتوپرواونه ساتله دپېښې په ځای کې یې دتصفیوي عملیاتو حکم وکړ اودعملیاتوپه ۳ ورځنې جریان کې دنېږدې نه دعملیاتود ځارنې په موخه یې ۶ ځلې سیمې ته سفروکړ او دداسې پېښو دمخنیوي په موخه یې دبنسټیزواقداماتوحکم وکړ ، دحملې په هماغو شپو ورځوکې مرسي هغه جنرالان اونورلوړپوړي عسکري افسران هم له دندو ګوښه کړل کوم چې دمتقاعد کېدو وخت ته رسېدلي وو خو خپلوځانونوته یې پخپله بیابیا دکارکولو وختونه تمدید ول ، محمدمرسي ددې زړوجنرالانوپرځای ځوانان رامخې ته کړل اوجنرال عبدالفتاح السیسي ته یې دفوځ دلوی درستیز دنده وروسپارله .

ولسمشرمحمدمرسي چې کله د ۲۰۱۲ کال په جون میاشت کې دصدارت منصب سمبال کړ نودمصر اقتصادي وضعیت ډېر خراب و ، دحسني مبارک دواکمنۍ پر مهال دهېواد داقتصاد څلور لوی منابع وو ، کرهنه ، دبهرنۍ نړۍ نه دزرو ترسیل ، دامریکامرستې اوسیاحت ؛ په دولتي اونادولتي ارګانونو کې په کارونو ګومارل شویو تنانو کې دکابو ۳۰ سلنې روزي دسیاحت له لارې دترلاسه کېدونکو پیسو سره تړلې وه چې دې دهېواد دمجموعي حاصلاتو ۱۲ سلنه تشکیلوله ؛ د ۲۰۱۱ کال انقلابونو اوسترو مظاهرو ، دامن په اړه دنه اطمینان اوددې ترڅنګ په نورو عربي هېوادونو کې دراپورته شووشورشونو له امله مصرته دسیاحانو راتلل په ټپه ودرېدل چې په نتیجه کې یې په مصر کې یوڅه بې کاري رامنځته شوه ، خوڅرګنده خبره ده چې پدې اړه محمدمرسي اودهغه اداره ګرم نه وه اونه ددې بې کارۍ دلرې کولو په لارکې دوئ دکوم غفلت ښکار وو .

دمحمد مرسي او دهغه داداري دلومړي وزير هشام قنديل دواړو تړاو دانجنرۍ دځانګي سره ونو دنړيوا اقتصادي غوښتنو د پوره کولو او دنړيوال اقتصاد سره همغږۍ راوستلو په لار کې دوئ يوځه مشکلات درلودل ، ددې ترڅنګ دمحمد مرسي سياسي شاليد داخوان المسلمون نومي هغه ګوند سره وچې له پيل نه تر آخره په آګاهانه ډول د اقتصادي ديواليه توب ښکار کړای شوی و نو داقتصاد په مربدن کې دنوي روح دپوکلو تجربه هم دوئ نه لرله اوددې ترڅنګ ددې خبرې نه هم انکار نه شي کېدای چې محمد مرسي په خپل شاوخواکې ديو تجربه کاراوفني اقتصادي ټيم په رامنځته کولو هم نه وبريالى شوى نوځکه دمصر دانقلاب نه پس ولسمشر او کابينه يې دداسې اقتصادي پلان په وړاندې کولو ونه توانېدل د کوم چې وګو اوبې صبر وو ګړو انتظار کاوه .

داهم بايد ومنو چې دمصر په نفوس کې دځوانانو سلنه مخ په زياتېدو ده ؛ د۱۸ نه تر ۲۹ کلونو دعمرلرونکو ځوانو هلکانو انجونو سلنه ۲۵ ته رسېږي او د ۱۲ نه تر ۳۵ کلونو عمرلرونکي وګړي دمصر تقريباً سم نيم نفوس تشکيلوي ؛ ددې ځوانانو قاطع اکثريت باسواده دی نوځکه دخپلو حقوقو او دحاکمانو دمسئوليتونو نه دنوروپه پرتله زيات خبر دي اوبيا د۲۰۱۱ کال انقلاب خو ددوئ امېدونه اوخيالات ډېر پورته يوړل ، دوئ کارغواړي ، دانصاف غوښتونکي دي اوپه سياسي عمل اوډګر کې خپله ونډه غواړي خوداچې دديکتاتورۍ په وحشي پنجو کې يې اوږده زمانه تېره شوی وه نو دستر ګوپه رپ کې يې ددې هرڅه پوره کېدل غوښتل چې ايله په يو کال کې داد محمد مرسي دادرې دتوان نه وتلې خبره وه .

لنډه داچې دمصرځوانان دمحمد مرسي نه دژرتبديلۍ راوستلو غوښتونکي وو خوهغوئ دولسمشر پرضد دراوتلو هيڅ اقدام لانه وکړی چې بل لورته دحسني مبارک داداري پاتې شونو ، په انتخاباتو کې شکست خوړلو ۳ کانديدانو احمد شفيق ، عمروموسی ، محمد البرادعي نه تشکيل شوي اتحاد دنړيوالو رسنيو له لارې داغوغاجوړه کړه چې دمحمد مرسي اداره په تبديلۍ راويستلو کې ناکامه

شوه ، دولس دامېدونو په پوره کولو کې پاتې راغله نوبايد استعفا ورکړي .

شنونکي وايي دمصر دتېرو ٦ لسيزو اوج ته رسېدلی داداري فساد او نورو مشکلاتو له منځه تلل ديويادوه کلونو کار نه و ددې تباه حالي هېواد لپاره شايد ۱۰ دامن نه ډک کلونه هم کفايت ونکړي نو دمشکلاتو اوستونزونو په ډک يو کال کې دهرڅه دښه کېدلو غوښتنه يا تمه ، په تبديلۍ راوستلو کې دناکامه کېدلو پيغور او ورپسې داستعفا غوښتنه ښځي نامعقوله او دبې انصافۍ نه ډکه خبره وه .

بياخبره پدې نامعقوله غوښتنې تم نه شوه بلکې ډېر ژر يې داغوښتنه دتشدد نه په ډکو مظاهرو بدله کړه اوپه لمحوکې خبره تر دفترونو او شخصي ودانيو سوځولو ، قتلونو اودمېر منودعزتونو ترلوټولو ورسېده .




ددې پرځای چې دمصر د فوځ لوي درستيز عبدالفتاح السيسي دفساد دمخنيوي لپاره جدي اقدامات کړي وای روان کړ کېچن وضعيت يې پلمه کړ ، ړومبی يې دواړو لوروته په خپلو منځونو کې د سولې کولو حکم وکړ چې هدف يې دخپل دبې پرې ثابتولو ناکام نمايش و ، بيايې ولمسمشر مرسي ته اخطار ورکړ چې په ۴۸ ساعتونو کې دې دخبرو له لارې دمسئلې حل راوباسي ګيني فوځ به مداخله وکړي اودراتلونکي لپاره به دعمل لايحه برابره کړي .

داپوزيسيون مشر محمد البرادعي

اونوروم‌خالفينودادفوځ له لورې دمرسي دولت ته په اخطارتعبير كړ خوددې اعلان نه پس دمرسي ، صدراعظم هشام قنديل اودلوى درستيز عبدالفتاح ترمنځ داوږدې ناستې نه پس دفوځ وياند وضاحت وكړ چې دا اعلان دخبرو اترو لپاره ميزته ددواړو اړخونو درابنكلو لپاره و ، دچاپرضد دانقلاب راوستلو ياكودتاكولو اعلان نه و .

خو دمحمد مرسي دمخالفينو دخواهش سره سم دا رښتيا هم دكودتا كولواعلان اواخطار و د ۴۸ ساعتونو پوره كېدوسره سم د مصر فوځ د دغه هېواد دولسمشر محمد مرسي حكومت نسكور كړ ، اساسي **قانون يې معطل كړ ؛ بيا د دغه هېواد داساسي قانون د محكمې مشر قاضي عدلي محمود منصور د دغه هېواد د موقت ولسمشر په توګه لوړه** وكړه اودفوځ مشر دغه هېواد كې د نويو ولسمشريزو او پارلماني ټاكنو اعلان هم وكړ .

دفوځ دې اقدام هغه شكوك په يقين بدل كړل چې دمحمدمرسي حكومت پرضد دخلكو دراپاڅولواوهېواد كې دګډوډيو رامنځته كولوترشادفوځ لاس و ، ترڅوېې دلاسه وتلې ۶۰ كلن اقتدار باندې بياقبضه راشي .

دملګرو ملتونو ادارې ، اروپايي اتحاد ، امريكا اونورې غربي نړۍ دريځ هم ډېر دتعجب وړ دى ؛ كله چې په كوم مسلمان هېواد كې ددوئ درائجو اصولو مخالفت كېږي نو دوئ پرې ډېر ژرخپل خفګان ښكاره كوي ، نړۍ يې په سر راخستې وي اوپه هغه هېواد دحملې كولو اود دلوټې لوټې كولو تر سر حده يې رسېږي خوچې كله دمصرپه څېرهېواد كې دغرب دجمهوري اصولو له لارې منتخب شوي دولت دفوځ په لاس له منځه وړل كېږي نونه يوازې داچې دمنافقت نه ډكوڅوخبروپرته نورهيڅ عكس العمل نه ښكاره كوي بلكې دپردې ترشادفوځ ملاتړوي او دهمدوئ په اشارو فوځ ټول دبشر ضد اعمال ترسره كوي اودوئ چوپه خوله وي ، داولې ؟ داځكه چې دلويديځ دجمهوري اصولو له لارې راغلى دمحمدمرسي حكومت اسلام خوښى و ، دمسلمانانو يووالي يې غوښتلو ، محمدمرسي هغه مصر كې داساسي قانون رائجول غوښتل كوم مصر كې چې دتېرې نيمې پېړۍ نه دزياتې مودې راهيسې چااساسي قانون نه پېژندلو ، يوازې د ديكتاتور خوښه به قانون ګڼل كېدلو

اوترټولوسترجرم محمدمرسي داوكړ چې دړومبۍ قبلې بيت المقدس دازادۍ لپاره په مسلح جهاد دبوختو مجاهدينو تائيد اوحمايت يې اعلان كړ اوغزه چې دتېرو څو كلونو راهيسې داسرائيلي دولت اودمصر دديكتاتورحسني مبارك دشريكې پرېكړې له دااقتصادي محاصرې لاندې وه ددې اقتصادي محاصرې نه دراويستلو لپاره يې درفح هغه لار پرانستله كومه چې دفلسطيني مسلمانانو لپاره دغزې نه دوتلو يوازېنۍ لار وه او دديكتاتور له لورې كلكه تړل شوې وه ، فلسطيني مسلمانانوته يې مصرته په راتللو دوېزې شرط هم ختم كړ اوددې ترڅنګ يې دفلسطين د دوه ګوندونو حماس او الفتح ترمنځ دسولې اويووالي هلې ځلې هم پيل كړې ؛ رښتيا داده چې په اوس وخت كې دړومبۍ قبلې دازادۍ لپاره داترټولو اول قدم وچې داسلامي نړۍ كوم مشرپورته كړ ؛ فلسطيني مشرانودده ددې اقدام هركلى وكړ او دې اقدام محمد مرسي دفلسطينيانودسرتاج وګرځاوه خوددې اقدام اسرائيل اوداسرائيلوسرپرسته امريكا دمحمد مرسي اودمحمدمرسي دادارې ډېرلوى دښمنان وګرځول نوځكه يې دمرسي پرضد دشومو پلانونو يوه نه ختمېدونكې لړۍ پيل كړه چې په نتيجه كې يې دمحمدمرسي اداره رنګه شوه اوپه دوه برخو دمصريانو دوېشلو ، په خپلومنځونو كې يې دتل لپاره داخته كولو او په مصر كې هم دشام په څېر ديونه ختمېدونكي داخلي جنګ دجاري ساتلولپاره ډېر سخت كوښښونه روان دي چې متأسفانه هيڅ څوک داسې نشته چې دودرولولپاره يې هڅې وكړي .

نن چې داڅو وروستۍ كرښې ليكم او دجولاى ۲۸ مه نېټه ده محترم لوستوال به درسنيوله لارې خبر شوي وي چې د قاهرې درابعه العدويه مسجد په ميدان كې دمحمدمرسي پر راټولوشويو پلويانوفوځ پرون دډزوباران كړى چې په نتيجه كې يې د ۲۰۰ نه زيات مسلمانان شهيدان او تر ۴۵۰۰ پورې ټپيان دي اناالله وانا اليه راجعون ، ډګرټول په وينوسور دى اوشفاخانوكې ځاى نشته بس دالله تعالى نه غواړو چې په خپل فضل دلته حالات سم اوپه اسلامي حاكميت راوستلو دمصر دمسلمانانو ارمانونو پوره كړي ، آمين .

# د ساروان کلا جنګ

قاري حبيب

په شمالي هلمند کې د ګرشک او کجکي ترمابين، دسنګين له مانده نيولې بيا مخ په شمال تر ګرماو پورې دهلمند درود په غاړه پرته ګڼ ميشته سرسبزه ناوه، چې اوږدوالی يې تر ۲۵ کيلومتره زيات دی، ساروان کلا بلل کيږي، دغه ستره ناوه چې په شمالي هلمند کې مهمه مسکوني او زراعتي سيمه ده، دسنګين ولسوالۍ مربوط ده، چې ددې ولسوالۍ له څلورو څخه ۳ برخې تشکيلوي.

ساروان کلا دهلمند په شمال کې هغه سيمه ده چې په تيرو يوولسو کلونو کې دسختو جګړو شاهده پاته شوې دي، او دنيولو لپاره يې بهرنيانو خورا ډيرې هڅې کړي دي، دې سيمې ته په لومړي ځل په ۲۰۰۵ م کال کې برتانوي يرغلګر داخل شول، چې له سخت مقاومت سره مخامخ شول، برتانويانو په ۲۰۰۶ م کال کې په دې سيمه کې ترټولو درانه زيانونه ورکړل، تر دې چې دهمدې کال دجولای مياشت يې ديرغل په څو کلنه دوره کې ترټولو خونړۍ مياشت اعلان کړه، برتانويان تر ۲۰۰۷ م پورې په دې سيمه کې په جګړو بوخت وو، خو پر ته له تلفاتو څه په لاس نه ورتلل، په ۲۰۰۷ م کال کې دبرتانويانو ترشکست وروسته امريکايي ځواکونو دهلمند دنورو سيمو غوندې په ساروان کلا بريد وکړ، او په سختو جګړو کې ښکېل شول.

له ۲۰۰۷ م کال نيولې بيا تر ۲۰۱۱م کال پورې امريکايي، برتانوي او نورو يرغلګرو په دې سيمه کې پرلپسې عملياتو، بريدونو، بمبارونو او دقرارګاوو تاسيس ته دوام ورکړ، په دې موده کې يرغلګر په دې ګڼ ميشته سيمه کې هميشه له سخت مقاومت، چاودنو او بريدونو سره مخامخ وو چې هره ورځ يې درانه تلفات زغمل.

امريکايانو په پای کې په دې سيمه کې د کلي په کلي قرارګاه جوړولو په توسط داسيمه په خورا درنو تلفاتو لاندې کړه، ساروان کلا چې د کجکي په خوا تلونکې لاري يې له منځه تيره شوې، دغه راز دزميندآور، موسی کلا، بغران، بغني، غورک، او ښکته سنګين ترمابين پرته ترټولو مهمه ستراتيژيکه سيمه ده، امريکايان يې همدې اهميت ته متوجه وو، نوځکه يې دنيولو لپاره له هيڅ ډول تشدد، مظالمو او تلفات ورکولو څخه دريغ ونه کړ.

يرغلګرو په ساروان کلا کې دڅلور کلن حضور په مهال ټوله هڅه کوله چې داسيمه په تلپاتې توګه دځان کړي، دهمدې لپاره يې کلي په کلي دداخلي عسکرو لپاره پوستې او قرارګاوې جوړې کړې، په اکثرو سيمو کې يې محلي اربکيان جوړ کړل، د ناوې دواړو خواوو ته درود او سرک په غاړو يې محکمې پوستې او قرارګاوې جوړې کړې، او په دغه سيمه يې ديوه دقيق پلان له مخې پوځي کمربند راوګرځاوو.

دامريکايانو او داخلي ځواکونو دهمدې پوځي ډيربښت له امله په تيرو څو کلونو کې ددې سيمې وضعيت تر دې حده خراب شو چې مجاهدينو په کې حتی چريکي فعاليت نه شو کولای، دهمدې وضعيت له امله او په داخلي عسکرو په اتکاء سره نور بهرنيو اشغالګرو دې ته اړ تيا نه ليده چې په دې سيمه کې پاته شي، نوځکه يې په ۲۰۱۱ او ۲۰۱۲ م کلونو کې له دې سيمې خپل ټول

پوځیان وا ایستل او چارې یې محلي اربکیانو ، پولیسو او داجیرې اردو سر تیرو ته وسپارلې .

په ۲۰۱۳ م کال کې دهلمند په سطحه دمجاهدینو په وړاندې تر ټولو مهم هدف ددغې سیمې یوځل بیا نیول ، یا لږ تر لږه دجهادي فعالیت په سیمه بدلول وو .

په همدې اساس دخالدبن ولید عملیاتو په ترڅ کې د روان کال د دمې دمیاشتې په ۱۹ نیټه سلګونه مجاهدین دهلمند له رود واوښتل او مخامخ یې دامریکایانو دځایناستي ځواک اربکیانو په پوستو بریدونه پیل کړل .

اربکیان چې امریکایانو د ساروان کلا داصلي ساتونکو په توګه تر شا پریښي وو ، په لومړني برید کې یې دمجاهدینو دهجوم په وړاندې سخت شکست وخوړ ، دساروان کلا دمجاهدینو یو مشر ( ملا مجاهد ) چې په دې جنګ کې برخوال وو ، وایي ( موږ ته د جنګ په لومړۍ ورځ معلومه شوه ، چې دساروان کلا دنیولو عملیات بریالي دي ، ځکه مجاهدین په جنګ کې په اربکیانو غښتلي او جرأتمن وو ، او په څو ساعتونو کې یې داربکیانو کمربند مات کړ )

دمجاهدینو په دې لومړني برید کې چې په حقیقت کې ساروان کلا ته دننوتلو عملیات وو ، د ۲۰ ساعته جنګ په نتیجه کې مجاهدینو داربکیانو ۴ پوستې فتحه کړې ، داربکیانو ۱۷مړي دجګړې په ډګر پاته شول ، چې په وژل شویو کې یې ۳ تنه جنګي قومندانان هم وو ، مجاهدینو دیوه ټانګ په شمول ګڼ شمیر وسلې او مهمات هم غنیمت کړل ، په لومړني برید کې مجاهدینو د توغي او کلاوالو په نوم پراخې سیمې په بشپړ ډول تر خپلې ولکې لاندې راوستې ، او ورپسې یې د نورو سیمو دنیولو لپاره عملیات پیل کړل
.

دساروان کلا مجاهدین وایي په لومړنیو عملیاتو کې دساروان کې اربکیانو ته داسې ضربه ور کړل شوه ، چې بیا کله هم ټینګ نه شول ، په همدې جګړه او ورپسې عملیاتو کې داربکیانو زیات شمیر مشران اوعام وسلوال ووژل شول ، او یوازې محدود شمیر یې په تیښته بریالي شول ، د عملیاتو په تسلسل کې مجاهدین هره شیبه دساروان د زیاتو سیمو د نیولو په حال کې وو تر دې چې مجاهدینو یوځل بیا ددې سیمې په مرکزیت او اصلي سیمو باندې ولکه ټینګه کړه او حکومتي قواوې یې څنډو ته په شا کړې .

ساروان کلا چې امریکایانو په خورا درنو تلفاتو نیولې وه ، دداخلي عسکرو له خوا داسې اسانه بایلات یې تر هرچا خارجي یرغلګرو ته دروند تمام شو ، نوځکه یې د کابل حکومت مجبور کړ ، چې په هره بیه کیږي ، باید ساروان کلا ته پوځي ځواکونه ولیږي ، تر څو په یومخیزه توګه ددې سیمې دسقوط مخه ونیول شي .

د ساروان کلا مجاهدین وایي امریکایان په دې پوهیږي چې که داسیمه سقوط شي ، په هماغه ورځ د کجکي ولسوالي هم سقوط ده ، چې یوازینۍ اکمالاتي لار په ساروان کلا ور تیریږي ، کجکی دبریښنا دبند او پخو امریکایي مراکزو له امله دیرغلګرو لپاره خورا اهمیت لري ، دغه راز امریکایان پوهیږي چې دساروان به سقوط سره په شمالي هلمند او کندهار کې دمجاهدینو مفتوحه سیمې سره وصلیږي ، چې دا به په دې سیمو کې دیرغلګرو څو کلنې ټولې خوارۍ په اوبو لاهو کړي .

له همدې امله خو داخلي اجیرانو دامریکایانو په مرسته او قومنده په خورا بیړه دساروان کلا جنګ ته زرګونه عسکر ولیږل ، چې ددې سیمې دبیر ته نیولو لپاره له مجاهدینو سره په سختو جګړو واوښتل .

د ساروان کلا مجاهدین وایي ، په تیرو ۲ میاشتو( جون - جولای ) کې دښمن دساروان کلا دبیا نیولو لپاره ۵ ځله ستر عملیات تر سره کړي دي ، داسې عملیات چې په زرګونو داخلي عسکرو په کې شرکت درلود ، داعملیات هرځل دمختلفو قول اردوګانو لکه هلمند ، کندهار ، کابل او هرات لخوا تر سره شوي دي ، په هرځل چې دیوې قول اردو پوځیان ستړي شوي ، پرځای یې بل لښکر راغلی او دلته یې عملیات پیل کړي ، مګر تر اوسه یې له شکست پرته هیڅ نتیجه هم نه ده تر لاسه کړې .

مجاهدین اوس هم دساروان کلا په مرکز او مهمو سیمو باندې ولکه لري او دښمن په اطرافو او په دښت او سرک باندې په خپلو مراکزو کې دیره دی ، او ددې سیمې په خورا محدوده سیمه باندې یې خپله ولکه ساتلې ده .

له پوځي بریدونو سربیره دښمن ددې جنګ دګټلو لپاره تبلیغاتي جنګ هم پیل کړی دی ، او څه موده وړاندې یې دخپل شکست د توجیه او عامه اذهانو دغولولو لپاره وویل چې ساروان کلا ته په زرګونو بهرني جنګیالي ، او دمخده موادو قاچاقبر راغلي دي ، چې غواړي داسیمه لاندې کړي ، خو دساروان کلا یو تن مجاهد وایي چې هغه مهال ددښمن د ۴۰۰۰ سر تیرو په مقابل کې زموږ دمجاهدینو شمیر ۲۵۰ تنه وو ، چې ټول دهمدې سیمې مجاهدین وو او دښمن یې له سختې رسوایي سره مخ کړی وو .

د ساروان کلا په جنګ کې تراوسه دښمن ته خورا درانه تلفات اوښتي دي ، خو دښمن یې په اړه هیڅ هم نه وایي ، دساروان کلا دمجاهدینو یو مشر ملا مجاهد وایي ، ددوی د اټکل له مخې تراوسه ددښمن له ۳۵۰ څخه زیات پوځیان له منځه تللي دي ، دغه راز داربکیانو زوریو مخ ختلی دی ، او اوس یوازې په نوم څو کسان پاته دي .

ددښمن په وژل شویو کسانو کې یې څو تنه جنګي قوماندانان لکه ګلالی ، اهل الله ، محب الله خان ، عبدالرحمن او دل اغا هم دي .

د ساروان کلا په جنګ کې دشکست او تلفاتو په اړه دښمن تراوسه ډېر معلومات مطبوعاتو ته نه دي راایستلي خو څه موده وړاندې په غیر ارادي توګه په مطبوعاتو کې ددښمن له خولې یوه داسې خبره راغله چې په دې جنګ کې یې ددوی دناکامۍ ، شکست او درنو تلفاتو راز افشاء کاوو .

څه موده وړاندې په ساوران کلا کې داربکیانو مشر غلام جان چې په دې جنګ کې یې لسګونه وسلوال بایللي دي ، په مطبوعاتو کې شکایت وکړ ، چې دحکومت دار دو ځواکونه ورسره همکاري نه کوي ، له همدې امله یې پوستې له لاسه ورکړي دي ، خو کله چې په دې اړه په ساروان کلا کې دپوځ له مشر قومندان جنرال عبدالواسع نه پوښتنه وشوه ، نوموړي وویل ، له اربکیانو سره کومک کول نور زموږ په وس کې نه دي ، تراوسه یوازې زما تر قومنده لاندې پوځیانو ۱۲۰ تنه په جنګ کې له لاسه ورکړي نو په داسې حالت کې به زه څرنګه له دوی سره مرسته وکړم .

ملا مجاهد وایي دساروان کلا په جنګ کې مجاهدینو خورا زیات مقدار مهمات ، ثقیل ماشیندار ، راکټ لانچر ، کلاشینکوفونه او نورې وسلې نیولي دي ، په جګړه کې تراوسه دشهیدو شویو مجاهدینو شمیر ۴۵ تنو ته رسیدلی دی ، دغه راز تر شلو زیات ملکي خلک هم په شهادت رسیدلي ، خو جګړه لا هم روانه ده ، چې په وروستي ځل ددښمن له جانبه دهرات دقول اردو پوځیان خپل بخت ازمویي .

ملا مجاهد وایي دده ټینګ باور دی ، چې مجاهدین به دساروان کلا پاته سیمې هم په واک کې راولي او ددښمن عسکرو ته به شکست ور کوي ، ځکه مجاهدین په دې سربیره چې په عقیدوي روحیه جنګیږي او په الهي نصرت ټینګ باور لري ، دسیمې په اراضي بلد دي ، ولسي ملاتړ ورسره دی ، له امریکایانو سره دجنګ تجربه لري ، او دانفجاري کمربندو په توسط توانیدلي ددښمن دوړاندې تګ مخه ډب کړي .

د ساروان کلا جنګ لا هم روان دی ، خو دا جنګ له امریکا وروسته ددرست افغانستان دوضعیت تشریح کوونکی یو سمبولیک جنګ دی ، امریکایانو ساروان کلا په سخت ظلم ، تشدد ، پوځي زور او تلفاتو داسې لاندې کړه لکه ټول افغانستان یې چې لاندې کړی وو ، خو وروسته چې مجاهدین یوځل بیا په دې سیمه په فاتحانه دریځ ورننوتل ، معنی یې داده چې مجاهدین دا توان لري ، چې یر غل ځپلی افغانستان یوځل بیا ازاد کړي ، اوس داخلي دښمن هڅه کوي ، دمسلسلو عملیاتو په توسط داسیمه یوځل بیا قبضه کړي ، خو د ۲ میاشتو په موده کې یې یوازې تلفات ګاللي ، مطلب دا چې دامریکانیانو جنګیالي ددې وړ نه دي ، چې ددوی له باور سره سم ورسپارل شوي وظایف ترسره او دجګړې میدان وپالي .




## سرښندنه

محسني بې پروا

که مرمیو مې ټټر خوړلی نه و
یا دښمن نه مې سنګر نیولی نه و

مخ مې تور کړئ بل په مخ لاړې راتو کړئ
که په ننګ باندې مې سر شیندلی نه و

بیا مې قبر دګودر په غاړه جوړ کړئ
که مې نوم دقهرمان ګڼلی نه و

پښتنې مورې افغان زوی به دې نه وم
که مې دین وطن ناموس ساتلی نه و

نن به لوبې وې زمونږ په خویندو میندو
که مو زور دکلک ایمان ښودلی نه و

دا ارمان به مې هم پاتې وای په زړه کې
(محسني) که مې سنګر پاللي نه و

## خویندو ته !

**حافظ محمد قاسم زهیب**

ښې ایسئ په ستر په حجاب هم په حیا خویندو
مه منئ، دغرب داینجیو ګانو یوناما خویندو
مه وزئ له کوره، کورودانو دکور شمعې یاست
مه باسئ دباندې خپل زینت خپله ښکلا خویندو
داسنګین پړونی، غټ کمیس، شرعي جامه خوند کا
نه ښایي فیشن داروپا او امریکا خویندو
جوړ کانديځ خصلت دامهات المؤمنین غوندې
ځان کړئ له دې ښکلي شریعت سره اشنا خویندو
مه کوئ، کیسې دټنډولکر او شاروخان راته
وګورئ دګر د فدایانو اې زما خویندو
څومره چې فلمونه ډرامې او نایټ کلبونه دي
دافکري وسله ده دیهود او نصارا خویندو
وایمه زهیب که دشیطان لاره مو خپله کړه
دابه وي له دین او له کلتور سره جفا خویندو

---

## ماه رمضان

نیشاپوري

آنکه از فرط گنه ناله کند زار کجاست؟
آنکه زاغیار برد شکوه بر یار کجاست
باز ماه رمضان آمد و بر بام فلک
می زند بانگ منادی که گنه کار کجاست
سفره رنگین و خدا چشم به راه من و توست
تاکه معلوم شود طالب دیدار کجاست
مرغ شب نیمه شب دیده به ره می گوید
سوز دل ساز بود دیده بیدار کجاست
ماه رحمت بود ای ابر خطا پوش ببار
تا نگویند که آن وعده ایثار کجاست
آن خدائی که رحیم است و کریم است و غفور
گوید ای سوته دلان عاشق دلدار کجاست

# په تود سنګر کې

حاجي محمد اواب

بیا ستي پر سر و اورو دي یو پېتۍ په تود سنګر کې
بیا دي حورو اچولی مست اتڼ په تود سنګر کې

مین داسي مستي داسي مجنون څوک و فرهاد څوک دی
لولپه چي د ځوانۍ کړي ښکلی بڼ په تود سنګر کې

بیا له ویري دي د بریده، شول ډېره پر ځایونو
بیا وهلي شیطانان دي سخت ګوزڼ په تود سنګر ي

زمونږ پر مځکه زمونږ غازیانو د مرګي په ستن و تار دی
بیا ګنډلی د کفارو لښکر ګڼ په تود سنګر کې

بیا راغلي په جلال کي افغانیت و اسلامیت دي
څه بلاوې کړې چپه لکه چنډڼ په تود سنګر کې

د افغان د جنګ لمبو خو داسي وریت کړله اوابه!
سره مخونه یې شول شنه، لکه بانجڼ په تود سنګر کې

# غزل

چینار تکور

غم، اوښکې، فریاده خدای دې وبښه
وه دجانان یاده خدای دې وبښه

نشته په وجود دې دپرهر نور ځای
اې تېږي هیواده خدای دې وبښه

سر دې هیڅ ظالم ته شکر تیټ نه دی
ځار هسکه شمشاده خدای دې وبښه

زما او دجانان ترمنځ خو مړ شولې
پاکه اعتماده خدای دې وبښه

تل چې دطالب لالي ملګری یې
خواره اقتصاده خدای دې وبښه

# دوفا لاره

مهاجر زاهدزاده فراه رودي

موږ دوفا په لاره ځو، خوجفا هم پېژنو
عمر موتېر شو په ژړا خو خندا هم پېژنو
که ګران رسول په نبوت منو تړې ژوند ځاروو
خو ابراهیم، ادریس، موسا او عیسا هم پېژنو
دا کړاوونه او ویرونه چه په ځان منوتل
که دنن فکر را سره دی، سبا هم پېژنو
چه په ځان بولو فرض ساتنه د مکې مدینې
خښتن دې نکړې هېرمونږ د اقصی هم پېژنو
دا چه روان یو مور چلوته او سرونه ښندو
که غلیم پېژنو ملګرو اشنا هم پېژنو
ډیموکراسي او د بشر حقوق ګڼي خپل شعار
د پردې شاته دا صلیب او بودا هم پېژنو
که د زلمیو قربانۍ په هر محفل کې ستایو
د ازادۍ په تنګ شهیده لیلا هم پېژنو
زاهدزاده که د تسپو لاړتل په لاس ګرځوو
پام کړه غلیمه غشي، توره غزا هم پېژنو

### له غیرت ډکه ځواني

نوي نوي شازلمي همداسې وي
مرګ ته خاندي لیوني همداسې وي

چې سپېڅلي دین نه مسته ځواني زار کړي
حقیقت کې قرباني همداسې وي

د بارو توپه لمبو د رومي هدف ته
لوګي کېږي سپېلني همداسې وي

د توپک او کمربند سینګار چې غواړي
له غیرت ډکه ځواني همداسې وي

# دچارواکوپه انتخاب کې ، دحضرت عمر رضی الله عنه معیار

ليک : عبدالرحمن عیدزوهی
ژ : خبیراحمدم

دمسلمانانودويم خليفه حضرت سيّدنا عمر فاروق رضي اللّٰه عنه، هغه سترنوم اوشخصيت دی چې دهغه ژوند داسلام له پيل څخه ترخلافت پوري له ميړانو، سرشاريواوستروتاريخي نوښتوډکه وو، دهغه ( رضي الله عنه ) کړني داسلام اوداسلام دسپيځلي پيغمبرصلي الله عليه وسلم ښايي معجزي وشميرل شي.

دهغه بختورخلافت لس کاله شپږمياشتې اوپنځه ورځي وي ، حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي : دحضرت عمررض په اسلام مشرف کيدل داسلام ستربری او په کفراوګمراهي دبطلان کرښه وه ، دهغه هجرت يوالهي نصرت وو، دهغه خلافت دالله تعالي لوی رحمت وو، مونږ دهغه داسلام له راوړلو مخکي په بيت الله شريف کې دلمانځه داداکولوجراءت نشوکولای ، دهجرت په ۱۶ کال يې دربيع الاول په مياشت کې دتاريخ مبدا اوشروع دنبوي ص دهجرت سنه وټاکله ، په رعيت دحکامودشفقت اومرحمت عملي بنسټونه يې کيښوول ، دخراج قانون يې پلي وګرځاوه ، بې شميره ښارونه يې اباد، قاضيان اوچارواکي يې ورته وګمارل ، ۱۰ مسلسل حجونه يې اداکړل ، ورستي حج يې د امهات المؤمنين بې بې عايشه رضي الله عنهاپه همراهي ترسره کړ ،

هغه ړومبي شخص وو چې په فرمان يهود له جزيرة العرب څخه وشړل شول اوترايران ، روم ، شام اونوروګڼوښارونو اوټاټوبوپوري يې داسلامي خلافت سلطه قايمه اوټينګه کړله .

دحضرت عمررضي الله عنه دغه احسانات ، کارنامي اولوړيني هيڅکله په څوليکنواوکتابونوکې ځايداي اوراټوليداي نشي اونه يې هم حق اداکيدلای شي ، مونږ صرف په دغه مختصره ليکنه کې په اجمالي ډول دواکمنواو واليانو په انتخاب اوتعين کې دحضرت عمررضي الله عنه هغه مبارک معيارچې له نبوي ارشاداتوڅخه يې مخامخ سرچينه اخيستي رااخلواوتاسودرنولوستوالوته يې وړاندې کوو،( له الله تعالي څخه يکې خاص توفيق اومرسته غواړو)

دچارواکوپه انتخاب اوانتصاب کې ترټولومهم اصل :

۱ – اهلیت اوامانت داري ؛

دچارواکوپه انتخاب کې دحضرت عمررضي الله عنه ، عملي سیاست اوتصمیم داوه چې والي اومسؤل شخص دځاني زهداوفردي تقواترڅنګ داسلامي خلافت موخوته بشپړه وفاداری اودچاروتوانمندی ولري اوپه هغو سرییره به دټولنیزفهم، درایت اوپه مسلمانانوددلسوزی څرګندي ځانګړتیاوي ولري ،لکه چې شرحبیل بن‌حسنه یې له همدې امله عزل اومعاویه بن ابي سفیان یې پرځای وګماره چې په معاویه کې اجتماعي درایت ترشرحبیل څخه ډیراوښکاره وو، شرحبیل بن حسنه له حضرت عمررضي الله تعالي عنه څخه وپوښتل چې : یا امیرالمؤمنین! ایازماله کړنوڅخه ته ناخوښ وي چې زه دي عزل کړم ؟ امیرالمومنین ورته وفرمایل: «لا! إنّک کما أحبّ، و لکنّي أرید رجلاً أقوی من رجل؛ نه! ته هماغسي یې چې زه دې خوښوم اومحبت درسره لرم ، خوزه له تاڅخه دیوه قوي کس په لټه کې یم .

۲ – پوهه اوبصیرت :

حضرت عمررضي الله عنه به زیاروېست ترڅوپه خلکوعالم اوفقیه واکمن وټاکي ، دهغه ترڅنګ یې اهمیت دې ټکي ورکاوه چې ګمارلي شوی شخص کې به داتوانمندي وي چې دخلکواوټولني له وضعیت اوعمومي حالاتوڅخه باخبر اوله خلکوسره یې برخورد دبصیرت اومعقولیت په ژبه وي ، حضرت عمررضي الله عنه په دې باوردرلودچې دځاني زهد اوپرهیزګاری لرونکي کس چې اجتماعیت اوذهانت ونلري ډیرځله دفتنواوچالاکوخلکوپه دام اولومه کې نښلي ، لکه چې دیوه کس په اړه یې داسې وویل : «إنه لایعرف الشرّ؛ هغه بد اوشرنه پیژني نوله ګمارلوڅخه یې پښیمانه اومنصرف شو، وریسي یې داهم وویل : «ویحک! ذلک أدني أن یقع فیه؛ وای پرتا، دغه ډول کس ډیرژر په بدی کې ګرفتارکیږي

۳. والي به دخلکوپه عرف اوکلتوراګاه وي :

بله مهمه نکته دوالیانواومسؤلینوپه انتخاب کې داوه چې وړاندي تردې چې یوڅوک دامیرپه صفت وټاکل شي هغه بایددهغې سیمې اوخلکوله رواجونو، عرفونواوکلتوري اداتوڅخه په بشپړډول اګاهي اومعلومات ولري ترڅووکولای شي داسلامي ارشاداتواوفرامینوپه تطبیق کې دخلکوغوره عرفونه منسلک اوهمکار وګرځوي اوښې مفاهمې اوهماهنګي پیداکولوته لارهواره کړي ، ځکه که یووالي اومسؤل دخلکوله اداتوڅخه باخبره نه وي اوسرچپه عمل وکړي نویولوی تصادم اوربړه منځ ته راځي اوهغه والي اومسؤل هیڅکله په خپلو وظایفوکې بری نشي ترلاسه کولای ، همدغه اصل ووچې حضرت عمررضي الله عنه به هیڅکله یودهاتي اودلیري پرتوسیمي استوګن په ښاریزي سیمي اوعلاقي نه ټاکه اونه به یې هم ښاریز کس په لیري پرتي کومي سیمي دمسؤل په توګه ګماره ، لکه چې حضرت سلمان فارسي یې پرمدائن، نافع بن‌حارث یې پر مکه، اوعثمان بن‌ابي‌العاص پر طائف امیران مقررکړل ، ځکه دغه ټول دهماغه ځایونواستوګن اوپه اداتوېي پوه وو

۴. خواخوږي اوشفقت ؛

داسلام دویم خلیفه به دخلکوپه وړاندې خپله ځان مسؤل باله ، نوهیڅکله به یې دانه خوښوله چې دولسي خلکو دشکوې اوشکایت په مقابل کې بې تفاوته پاتي شي ، له همدې کبله به هغه زیات کوښښ په دې برخه کې کاوه چې په خلکورحم دله اوله شفقت اومرحمت ډک مسؤل وټاکي ، ترڅوخلکوته ستونزي جوړي نکړي اوظلم اوتعداتې صادره نشي ؛

یوکس چې حضرت عمررض غوښتل هغه یوځای دامیرپه صفت ولیږي دهغه خواته په داسې حال کې راغي

چې حضرت عمررض خپل واړه ځامن په غیبر کې نیولي وواوهغه یې چپه ول ، هغه کس تعجب وکړ اووي ویل چې ای امیرالمومنین ! ایاته په رښتیاخپل ځامن چپوي ؟ ماخوتراوسه خپل اولادونه ندي چپ کړي ، حضرت عمررض ورته په ځواب کې وویل : «فأنت والله بالنّاس أقلّ رحمة؛ قسم په الله دی چې ته په دغواخلاقوسره په خلکودلږې مهرباني لرونکي یي ،هماغه ووچې دهغه کس له انتخاب څخه حضرت عمررض منصرف وګرزید.

۵. مسؤلیت ته دخپلوانونه ټاکل ؛

ځیني حاکمان ددې لپاره چې له یوشمیرتهدیدونوپه امان کې پاتې شي اوشخصي منافع یې خوندي وي ، نوهڅه کوي چې دصالحواولایقوکسانوپرځای ددوی نیږدي خپلوان دواک ګدی اومقام ته ورسیږي ؛ خوحضرت عمررضي الله عنه دغه دوداوتصورمات کړ ، نه یې خپل دتره ځوی ( سعیدبن زید ) اونه یې هم خپل مشرځوی ( عبدالله بن عمر ) چیرته دامیراوواکمن په توګه مقرراوولیږل ، بلکې دابه یې فرمایل : من استعمل رجلاً لمودّة أو لقرابة لایشغله إلا لذلک فقد خان الله و رسوله؛ چاچې یوڅوک دخپلولي اوځاني دوستي په خاطرپه مسؤلیت وګماره نوله الله ج اودهغه له رسول ص سره یې خیانت وکړ

۶ـ دهغوکسانونه ګمارل چې په خپله دمسؤلیت مطالبه کوي ؛

امارت اومنصب دخلکواوالله ج په وړاندې هغه دروندباراومسؤلیت دی چې یوعاقل اودوراندیشه شخص به په ډیرې سختي سره تیارشي چې غاړه ورته کیږي اوداکاربه خوراناسم وي چې دغه درون پیتي ته په خپله ځان څوک وړاندې کړي ، حضرت عمررض به دغسې کس ته هیڅکله مسؤلیت نه ورکاوه بلکې فرمایل به یې : «من طلب هذا الامر لم یعن علیه؛ څوک چې دقدرت په خپله غوښتونکي وي په کارکې به یې دالله تعالي له لوري مرسته اومعاونیت نه وي موجود.

۷. له ټاکلو وړاندې دمسؤل کس اروزل اوارزیابي کول ؛

داسلام دوهم خلیفه به والیان وړاندې تردې چې وي ټاکي دیوې مودې لپاره به یې له ځان سره دروزني اوارزیابي لپاره نیږدې وه سول ، حضرت احنف بن قیس وایي : زه له حضرت عمررض سره تریوه کال پوري وسیدم ، له هغه ورسته یې راته وویل چې ای احنف ! ته مې وروزلې اوامتحان مې کړې ، داچې ظاهردې نیک اوصالح دی هیله لرم چې باطن به دې هم همداسې نیک اوله ښیګڼوډک وي ، بیایي هغه دوالي په صفت ولیږه .

۸. دخلافت فرمان ؛

زیاتره مورخین دغه نکته ذکرکوي چې کله به حضرت عمررض کوم والي اومسؤل لیږه نویومکتوب اوفرمان به یې هم ورسره په لاس ورکاوه اویوشمیرمهاجرین اوانصاربه یې په هغه ګواهان نیول ، په هغه فرمان کې به یې یولړشروط اوقیودات لیکل لکه نن سباچې دسوګند اخیستلوپه نوم لیکل کیږي اوخاص مراسم ورته دایریږي ، داسلام دویم خلیفه به لاندې قیدونه اروموپه فرمان کې راوړل چې والي به دخلکوپه مال اوځانوله هرډول ستم اوتیرئ څخه ځان ساتي اوله خپل مقام اومنصب څخه به دشخصي ګټواومنافعولپاره استفاده نکوي .

۹. دوالیانوپه انتخاب کې مشوره اوتحقیق ؛

حضرت عمررض به دوالیانوپه ټاکنه اوانتخاب کې له کباروصحابه کراموااهل خبره کسانوسره له نیږدې مشوره اوسلاکوله یوه ورځ یې دصحابه کراموپه مجلس کې داسې وفرمایل : «دلّوني علي رجل إذا کان في القوم أمیراً فکأنّه لیس بأمیر، و إذا لم یکن بأمیر فکأنّه أمیر. فأشاروا إلي

الربیع بن زیاد؛ ماته داسې کس معرفي کړي چې په قوم یې امیراوزمامدارمقررکړم ، لکه چې ته وایې امیراوزمامدارنه دی (یعنې ځانته په خپله دامیریه عنوان نه وي قایل اومغرور، بلکې ځان دخلکوخادم بولي) ( اوچې کله زمامدارنه وي ته به وایې چې زمامداراووالي دی (یعنې دخلکواوټولنې په وړاندې احساس دمسؤلیت ولري اوپه خدمت کې یې وي ) صحابه کراموپه دغه وخت کې حضرت ربیع بن زیادورته معرفي کړ، چې هغه په دغواوصافوموصوف شخص دی .

۱۰ - دوالیانودشخصي ثروت محاسبه ؛

حضرت عمر رض به وړاندې تردې چې والي اوحاکم ولیږي نواول به یې دهغه مال اوشخصي دارایي محاسبه اومعلوموله ، ترڅودهرډول شکوکواوشبهومخه ډب شي ، که به کوم والي دعزل اولیږي کیدوپه وخت کې داوویل چې دغه مال یې دتجارت اوکاروبارله وجې لاسته راوړی ، نوحضرت عمررض به هغه نه ورسره منل بلکې ورته ویل به یې : «إنّما بعثناکم ولاة و لم‌نبعثکم تجاراً؛ ماته دحکومت داری اودمسلمانانودخدمت لپاره استولي یې نه دتجارت اوشخصي ګټودترلاسه کولو لپاره .

۱۱ - دوالیانوداختیاراتوحدود ؛

حضرت عمررض به والیان صرف دخلافت په عمومي پیروي اوتګلاره ملزم اوپابندګڼل ، په سیمه ییزواومنطقوي امورو کې به یې والیانوته مکمل اختیارات ورکول چې دسیمې اومحیط دشناخت اومصالحوپه تناظراودایره کې اجراات ترسره کړي

۱۲ - امیربه دخلکوخادم وي ؛

حضرت عمررضي الله عنه ، به دغه اصل ته په پام چې امیربه دخلکوخادم وي دغه ډول لارښوونې به یې ورته کولې ، شپه ورځ بایددخلکواورعیت په خدمت کې ووسي ،

یوه لحظه هم دامارت دروازه دخلکوپه مخ مه بنده وي اوفرمایل به یې «إنّي لم أبعثکم جبابرة و لکن بعثناکم أئمة، فلاتضربوا المسلمین فتذلوهم، و لاتحمدوهم فتفتنوهم، و لاتمنعوهم فتظلموهم؛ زه ددې لپاره تاسې نه لیږم چې په خلکوظلم اوستم تطبیق کړی ، بلکې ددې لپاره مواستوم چې دخلکولارښوداوپیشوا جوړشي ؛ نومسلمانان په وهلواوکنځلومه خواروی ، په بې ځایه مدحواوصفتونوځانونه په فتنوکې مه غورځوي اوخلک دخپلوحقوقوپه محروموولوسره ځان د ستم اوظلم مرتکبین مه جوړوی

یوه ورځ حضرت عمررض یوې ډلې مسؤلینوته داسې وفرمایل : تاسي ددې لپاره نه استخداموم چې دخلکوپه وینواودهغوپه ابرواوعزت مسلط وګرزی ، بلکې هدف دادی چې دخلکوپه منځ کې لمونځونه قایم کړی ، دعمومي سرمایواوشتمنیوساتنه وکړی اوحق حقدارته ورسوی ، دخلکوپه منځ کې په عدالت اوانصاف پریکړې وکړی .

۱۳ - دوالیانواوحکامونظارت ؛

عمر، رضي‌اللّه‌عنه، به تنهادوالیانوپه ټاکنه ځان له مکلفیت ځخه نه ژغوره ، بلکې دوالیانواومسولینوله کړنوبه یې په دقیق ډول ځان خبراوه ، دخلافت هیڅ یوه داسې خطه اوټاټوبي نه ووچې هغه به ترې اګاه نه وو، بلکې وخت په وخت به خاص وفدونه لیږل اوله حالاتوبه یې ځان په جریان کې اچاوه .

یوه ورځ یې داسې وفرمایل : «أرأیتم إذا استعملت علیکم خیر من أعلم، ثم أمرته بالعدل أکنت قضیت ما علي؟ فقالوا: نعم! قال: لا، حتي أنظر في عمله أیعمل بما أمرته أم لا؛ ماته ووایې : که یوبهترین شخص چې زه یې پیژنم اوپرتاسې یې واکمن مقررکړم اوهغه ته په عدالت امروکړم ایاپه دغه ټاکنه اوانتخاب به زما دنده اومسولیت رفع شي ؟ خلکوورته وویل چې هو! حضرت عمررض وویل نه ،

مګرترهغوچې په کارېې دقيق نظارت ولرم چې اياهغه څه يې عملي کړي چې ماورته سپارلي اودستورمې ورکړی !

لکـه چـې دعمـومي نظـارت اوپلټنوليـاره يـې محمّـدبن‌مسـلمه انصـاری ديـوه پـلاوي پـه مشـري کـې ګڼوسيمواوښاټوبوته وليږه ترڅودحکامولـه کړنواوعملکردی څخـه څارنـه اولـه خلکوپوښـتني وکـړي اودخلافـت دحدودواوسلطي په باب اندازه اومعلومات راجمع کړي .

خپله حضرت عمررض شام ته دری ځله سفرونه کړي ، دواليانو کورونوته ورغلي ، له ولس سره يې دهغودچلندپه باب لـه نيږدې ځـان خبرکړی ، دشام پـه سفرکې دحضرت ابوعبيده بن جراح رض کورته ورغي اودهغه ساده ، فقيرانه اوزاهدانه جونګړه يې وليدله اوږاړه شو، همدارنګه داسلام دلوی قهرمان اوشجاع خالدبن‌وليد، رضي‌اللّٰه‌عنه، کورتـه پـه داسې حـال کې ورغـي چې پرتـه لـه وسلې چې دهغـه پـه تـرميم بوخـت وو بـل کـوم قيمتـي څيـزيـې پـه کورنـه وموجود! !

دحضرت عمررض له شهادت څخه يوکال وړاندې هغه مبارک اراده کړی وه اوصحابه کراموته يې ويلي ووچې که داللّٰه خوښه وه اوژوندی وم په راتلونکي کال به دنظارت اودمسلمانانودمشـــــکلاتودمعلوموليه خـــــاطر بيلابيلوښارونوته سفرونه کوي ، ترڅودخلکوستونزي په خپله واوري اودواليـانوکړنې پـه خپلوسترګوووينې. ، هغه ويلـي ووچې اول به شام ته ځـم اوهلتـه بـه دوه مياشتي تيروم ، بيابه دعراق شمال دجلـه اوفرات تـه ځـم اودوه مياشتي بـه هلتـه تيروم ، بيابـه بصره اوکوفـه تـه اودوه دوه مياشتي بـه هلته تيروم ، زمادې پـه اللّٰه قسـم وي چې دغـه کـال بـه څـه غوره اوبهترکال وي !

۱۴ـ دنيمګړتياپه صورت کې دوالي عزل ؛

کچيري به دکوم والي اواميرپه دنده اوکړنوکې خلل اوانحـراف مشـاهدکړل شـو اودخلکوخـدمت بـه يـې پـه ښـه توګه نه وورسولي ، نوپرته له کوم ځنډڅخه به يې دهغه په رفع کولوکې اقدام کاوه اوکه به هغه مشکل دوالـي اوامير پـه عـزل اوليـری کولوترسـره کيـده حتمابـه يـې والـي عـزل اوبل غوره کس بـه يـې ورتـه پـه عـوض کـې ټاکـه ، حضرت عمررض به فرمايل «خير لي أن أعزل کل يوم والياً من أن أبقي ظالماً ساعة من نهار؛ ماته داغوره اوبهتره ده چې هره ورځ چې لازمه وي والي عـزل اوليـري کـړم لـدې خبـري نـه چـې يوظـالم پـه ورځ کـې يـوه لحظـه پـه ظلـم کـې پـاتي اووساتلي شي ، حضرت عمررض به وفرمايل «إنّما عامل لي، ظلم أحداً فبلغني مظلمة، فلم أغيرها فأنا ظلمته؛ که ځمـايووالي پرچـاظلم اوسـتم وکـړي اوزه دهغـه ظلـم درفـع اودفع په برخه کې اقدام ونکړم ، داسې ده لکه چې ماپرهغه کس ظلم کړي وي !

منـــــــــــــــــــــــــــابع:


۱، ابن‌الجوزی، ابوالفرج عبدالرحمن؛ مناقب اميرالمؤمنين عمــربن‌الخطــاب؛ بيــروت: دارالهــلال، ۱۴۰۹ هــ. / ۱۹۸۹ م.
۲، صــلابي، علــي‌محمّــد؛ فصــل الخطــاب فــي سـيرة اميرالمـؤمنين عمـربن‌الخطـاب؛ دمشـق: دارابـن‌کثيـر، ۱۴۳۰ هـــــــــــــــ. / ۲۰۰۹م.
۳، طبری، ابوجعفر محمّدبن‌جرير؛ تاريخ الطبری؛ بيروت: دارالکتـــــب‌العلميـــــه، ۱۴۰۸ هـــــ. / ۱۹۸۸ م.
۴، طنطـاوی، علـي، و نـاجي طنطـاوی؛ اخبـار عمـر و اخبار عبداللّٰه‌بن‌عمر؛ بيروت: المکتب‌الاسلامي، ۱۴۰۳ هـ. / ۱۹۸۳ م.

# دحسن روحاني بريالیتوب

# اوپروړاندې يې ګڼې ننګوني



حسن مومند

په اوسنو ولسمشريزو انتخاباتو کې ايرانيانو ۶۵ کلن حسن روحانی دخپل هيواد لپاره نوی ولسمشر وټاکلو ؛دايران دقانون له مخې که چېرې په انتخاباتو کې يو کانديد هم ۵۰ سلنه رای ترلاسه نکړای شي نو په يوې اوونۍ کې دننه به بيا له سره انتخابات کېږي ؛په اوسنو انتخاباتو کې ددوهم ځل انتخاباتو ترسره کولو اړتيا راپېښه نه شوه بلکې په هماغې ړومبۍ مرحلې کې حسن روحاني ۵۱ سلنه رای ترلاسه او دايران په تاريخ کې يوولسم منتخب ولسمشر وګرځېد.

دعصري او ديني دواړو علمونو عالم ، کامياب ديپلومات او پوه سياستوال ډاکټر حسن روحاني ژوند ته چې اوګورو نو راته جوتېږي چې دهغه علميت او شخصيت دايران په څېر دنړۍ په سياست کې دمهم مقام لرونکي هيواد لپاره ډېر مناسب دی او دا دايراني ولس له لورې دايران لپاره ډېر غوره انتخاب دی.

حسن روحاني د۱۹۴۸ کال دنومبر په ۱۲مې نېټې دايران په سمنان ولايت کې زېږېدلی،هغه داهل تشيع په يوې داسې بنسټپالی کورنۍ کې نړۍ ته ستر ګې وغړولی کومه چې دوخت دحاکم شاه ايران په مقابل کې په پيل شوي مقاومت کې ډېره فعاله وه نو ځکه يې لا له کوچنيتوبه دمذهبي علومو دزده کړې اوپه اهل تشيع ټولنې کې دمذهبي مشرۍ سره شوق و ، په داهل تشيع دمشهورو او ډېرو مدرسو ښارقم ته ولاړ چې د۱۹۶۹ پورې همدلته په زدکړو بوخت و ؛ حسن روحاني چې دمذهبي علومو ۱۹۶۰ کې يې دسمنان له يوې مدرسې نه ديني زدکړې پيل کړې او کال پس بيا ترڅنګ يې دعصري علومو سره هم مينه درلودله په ۱۹۶۹ کې دتهران پوهتون ته ولاړ او دلته يې دعدلي قانون لوستلو نه پس دماسټرۍ لپاره دبرطانې ګلاسکو پوهنتون ته ولاړ ،دماسترۍ دپوره کېدو او دايران دانقلاب دبرياليتوب نه پس هغه په خپل هېواد کې پر ډېرو مهمو پوستونو خدمت وکړ خو خپله دزدکړو لړۍ يې پرې نکړه او په ۱۹۹۹ کې دبرتانې دياد پوهنتون نه دډاکټرۍ دسند په ترلاسه کولو بريالی شو.

دحسن روحاني تعليمي شاليد ته په پام سره داويل پرځای دي چې هغه نه يواځې داچې دلويديځ په نظام پوه دی بلکې دلويديځ په يو مهم هېواد کې دپاتې کېدو له امله هغه دلويديځ دقانون او سياست نه هم ډېر ښه خبر دی.

دحسن روحاني په اړه داخبره هم له پامه نه شي غورځېدای چې دايران انقلاب کې هغه له فعالو غړو څخه ګڼل کېدلو،بل داچې دخپل سياسي سفر پيل يې دځوانۍ په شپو ورځو کې دايران دشاه پرضد دمقاومت نه وکړ ، اوهمدارازدانقلاب دکاميابېدو نه په لږ.و وړاندې شپو ورځو کې به هغه ددولت پرضد دويناګانو لپاره دايران مختلفو ښارونو ته سفرونه کول چې دولت پرې په عامو غونډو کې دوينا کولو بنديز هم لګولی و خو هغه به نه منع کېدلو نو ځکه څوځلې زنداني شوی هم و.

کله چې آيت الله بهشتي او آيت الله مطهري خمينی ته دهېواد پرېښودلو مشوره ورکړه او دهمدوئ په مشوره دايراني انقلاب بنسټ ايښودونکی فرانسې ته ولاړ او دهماغه ځای نه يې دشاه پرضد مقاومت

رهبري كولو نو هغه مهال حسن روحاني په اروپا كې دانقلاب دبرياليتوب لپاره ډېرې زياتې هلې ځلې كولې، هر پوهنتون ته به ور تللو او ايراني محصلينو ته به يې دسوال او جواب دپروګرام له لارې دخميني پيغام او افكار ور انتقالول، ځكه خو په ۱۹۷۹ كې دايراني انقلاب دبرياليتوب نه پس هغه دپارلمان غړى شو او دكال ۲۰۰۰ پورې هغه ۵ ځلي دمنتخب غړي په صفت پارلمان ته په تللو بريالى شو، ددې ترڅنګ هغه په يو وخت كې دملي امنيت دهيئت او دپوهانو دهيئت غړيتوب هم درلودلو، دعراق او ايران جنګ دپاى ته درسېدلو نه پس هغه دستر ملي امنيت په اداره كې دايران رهبر آيت الله خامنه اى خپل نماينده اوړومبي سكرتر په صفت مقرر كړ، هغه پدې منصب ۱۶ كاله پاتې شو چې دايران د ۲ منځ لارو ولسمشرانو محمد خاتمي او هاشمي رفسنجاني په دورو كې هم له دې دندې لرې نكړاى شو چې بالآخره يې داحمدى نژاد دولسمشر كېدلو نه پس له دې دندې استعفاور كړه.

دنوموړي اداري دمشر په حيث دحسن روحاني منځلاريتوب ايرانيانو ته ښه راښكاره شو او همدلته يې داشهرت هم وموندلو چې دزيات كار كولو سره يې مينه ده او پر حقايقو ولاړ سياست غواړي.

څېړونكي وايي چې دايران داتومي پروګرام پرسر دلويديځ سره دراپورته شوى لانجې په اړه دمشر مركچي په صفت دحسن روحاني ديپلوماتيک مهارت او تدبر هغه وخت څرګند شو چې دفرانسې، المان او برتانې سره يې په برياليتوب مذاكرات مخ په وړاندې بوتلل

دحسن روحاني په وينا ايران دده په مشوره دملي منافعو په خاطر د۲۰۰۳ كال نه تر۲۰۰۵ پورې ديورانيمو دغني كولو پروګرام ودرولى و؛ خو دا اقدام دلويديځ له لورې داقتصادي ګټو پر ترلاسه كولو پورې مشروط و؛ واک ته داحمدى نژاد درسېدلو سره سم داقتصادي مرستو دالړۍ هغه مهال پرې شوه چې حسن روحاني له خپلې دندې استعفا ور كړه.

داقتصادي ګټو په مقابل كې ديورانيمو دغني كولو دپروګرام په ودرولو ټول ايرانيان خوښ نه وو او دا يې دسترو ملي ګټو ضد اقدام ګڼلو نو ځكه دانتخاباتي كمپاين پر مهال حسن روحاني پدې اړه دايرانيانو دانتقاد سره مخامخ شو خو هغه دا جواب وكړ چې موږ پدې سره ايران دجنګ نه وژغورلو، افغانستان او عراق اشغال شوي و، نوبت دايران و چې موږ يې (دمذاكراتوله لارې) مخه ونيوله.

ديادولو وړ ده چې دعراق او ايران دجنګ پر مهال حسن روحاني دملي هوايي دفاع قوماندان و چې ددفاعي چارو لپاره دادده ډېره اړينه تجربه ګڼل كيږي او ايران چې اوس دكومو حالاتو سره مخامخ دى دا تجربه به ور ته ډېره ګټوره ثابته شي.

حسن روحاني دملي مصالحو،، نومې مجلس غړيتوب هم لرلو ،ددې مجلس لپاره دايران درهبر له لورې غړي ټاكل كېږي او تر ټولو مهمه دنده يې دقانوني اصلاحاتو په اړه دپارلمان او دمشرانو دجرګې ترمنځ رابطه جوړول وي؛ هغه دولسمشر جوړېدو پر مهال هم ددې مجلس غړى و او ددفاعي، سياسي او امنيتي چارو څارنه يې مسئوليت و.

ديادولو وړ ده چې دااداري، تعليمي او سياسي لويو مسئوليتونو دادا كولو ترڅنګ حسن روحاني په علمي، سياسي، ثقافتي او نشراتي ميدانونو كې هم ځان مشغول وساتلو، دتهران پوهنتون دعلمي مجلس غړى دى، او د ۱۹۹۱ كال نه راپدېخوا دستراتيجيكومطالعاتو اداره خو يې دپېژندګلوى يوه ستره نښه ده؛ په فارسي او انګريزي ژبه كې دخپرېدونكو ۳ جريدو مديريت هم دحسن روحاني پر غاړه دى؛ دا ۱۵ ورځنۍ جريدې دي او ټول ساينسي او تحقيقي مضامين خپروي حسن روحاني دايران داتومي لانجې پر سر دنړيوالو طاقتونو سره دمذاكراتو او دايران، امريكا او نورو لويديځ ترمنځ په روابطو كې درامنځته شويو لوړو او ژورو په اړه يو كتاب هم ليكلى دى چې پكې يې خپل ټول ياداشتونه راخستي دي، د

National Security and Nuclear Diplomacy په نوم ليكل شوي دې كتاب په ايران او نورې نړۍ كې ډېر شهرت وموندلو؛ له دې پرته ددېپلومات، سياسي او انقلابي ليډر، مذهبي عالم او دتعليمي چارو دماهر په صفت حسن روحاني په عربي، فارسي، اوانګليسي ژبو كې ګڼ كتابونه او په سونو تحقيقي مضامين او مقالې ليكلي دي.

دحسن روحاني نوم دروان كال دمئ په ۷ مې نېټې دولسمشريزو انتخاباتو لپاره ثبت شو، دانتخاباتي كمپاين په پيل كې دهغه مقبوليت دخپلو مقابلو حريفانو په نسبت كم و خو چې كله داصلاحي تحريک ليډر

او پخواني ولسمشر محمد خاتمي دحسن روحاني حمايت اعلان کړ او خپل يو بل کانديد ملگری رضا عارف يې هم دې ته تيار کړ چې دحسن روحاني په حق کې دې په انتخاباتو کې له گډون نه تېر شي ؛ د دې ترڅنگ دحسن روحاني دبريالیتوب امکانات هغه مهال نور هم زيات شول چې کله ولسمشر علی اکبر هاشمي رفسنجاني هم دده حمايت اعلان کړ ؛لا په پيل کې دايران شوری نگهبان په انتخاباتو کې دهاشمی رفسنجانی گډون ممنوع اعلان کړی و.

شوری نگهبان په ۱۲ ديني عالمانو او قانون پوهانو مشتمله هغه اداره ده چې دولسمشرۍ لپاره د کانديدو تنانو داهليت او شموليت په اړه پرېکړه کوي.

د خميني دلمسي حمايت هم حسن روحاني ته گټه ورسوله او د ۲۰۰۹ کال د انتخاباتو په نتيجه کې د تر سره شويو مظاهرو نه پس ددوه اصلاح غوښتونکو ليډرانو مهدی کروبی او مير حسين موسوي نظر بندي هم دده لپاره غوره چانس شو خو کوم شي چې حسن روحاني ديو عام کنديد نه راوويست او دعوامي اميدونو په مرکز يې بدل او دايران ترټولو ستر ولسي او دولتي منصب ته يې ورسولو هغه داقتصادي چارو په اړه دده موقف و ؛ دانتخاباتي کمپاين پر مهال به هغه تل دايران په اوسني خراب اقتصادي حالت د تأسف اظهار کاوه او ويل به يې چې دخراب اقتصادي حالت يواځنی لامل دايران داتومي لانجې په اړه دايران سخت موقف دی چې له امله يې ايران په بين المللي ډگر کې ديواځيتوب ښکار کړيدی او دايران اقتصاد دفشار او تاوان سره مخامخ دی ؛ هغه به ويل چې دايران مشکلات به په ښه شان او پوره تدبر حل کوم.

په مختلفو وختونو کې پر ايران دلگېدلو نړيوالو اقتصادي بنديزونو له امله هسی هم دايران اقتصادي حالت د تېر په پر تله خراب شوی و خو چې کله تېر ستمبر کې دايران پر مرکزي بانک دتېلو دراکړې ورکړې په باره کې بنديزونه ولگېدل نو يو امريکايي ډالر د ۴۰۰۰۰ ايراني تومن سره برابر شو چې له امله يې بی کارۍ او قيمتۍ ډېره په تيزۍ سره پوره ته ولاړه.

حقيقت دادی چې ايرانيان د اوسنۍ بی کارۍ او قيمتۍ نه تنگ شوي وو او د کوم نجات ورکونکي په طلب کې وو ؛ دانتخاباتي کمپاين پر مهال چې کله حسن روحاني په ښه تدبر سره داقتصادي او نورو مشکلاتو دحل خبره وکړه نو ايرانيانو ته همدا ديواځني نجات ورکونکي په صورت کې ښکاره شو ځکه يې دده د کاميابولو لپاره دجون په ۱۴ مې نېټې په لوي شمېر کې په ولسمشريزو انتخاباتو کې گډون وکړ.

دايران د کورنيو چارو دوزارت په وينا په انتخاباتو کې دگډون کوونکو سلنه ۷۲، ۲ ته رسېدلې وه ؛سخته گرمي وه خو بيا هم د رای ورکولو لپاره دسهار نه اوږده قطارونه جوړ شوي وو ؛ له غرمې وروسته د رای ورکونکو شمېر دومره زيات شو چې ۳ ځله په وخت کې توسيع وشوه چې آخر کې ۵ ساعتونو ته ورسېدله ؛ د رای ورکولو په مرکزونو کې دمېرمنو او ځوانانو شمېره زياته وه ؛ شنونکي وايې : له دې ښه څرگندېږي چې دبې کارۍ او قيمتۍ دزياتوالي په اړه په خلکو کې تشويش زيات شويدی. ديادولو وړ ده چې دايران سياسی ډلې دنړيوالو په ژبه په دوه برخو ويشل کېږي يو په بنسټپالو نوموي او بله په اصلاح غوښتونکو ؛ ټول لويديځ او په ځانگړې توگه لويديځوالې رسنۍ دا تأسر خپروي چې دبنسټپالو تر شا دشوری نگهبان او دايران رهبرۍ لاس دی ؛ کله چې دشوری نگهبان له لورې درفسنجاني د کانديدۍ کاغذونه مستر د شول نو په ډېر زور شور به دا خبره کېدله چې دايران مذهبي قيادت نه غواړي چې کوم اصلاح خوښوونکی دايران ولسمشر شي.

دا خبره سمه ده چې دايران دمذهبي قيادت خواخوږي به دبنسټپالو سره وي او دهمدوئ له ډلې به ديو تن ولسمشر کېدل غوره گڼي خو په اوسنو انتخاباتو کې ديو اصلاح خوښونکي کاميابۍ دغربي رسنيوو او پوهانو دا تبصرې غلطې ثابتې کړې چې گينې مذهبي قيادت ديوې ډلې يا فرد داسې حمايت کوي چې پرې دعوامو د رايو مقابله وکړای شي او يا پرې کوم اصلاح خوښوونکی ناکام کړای شي.

دا خبره هم دپام وړ ده چې دحسن روحاني تړاو داصلاح خوښونکو سره دی ځکه خو يې په بريالیتوب دملگرو ملتونو دستر سيکر تر بان کي مون او امريکا دولسمشر بارک اوباما په شمول گڼ شمېر لويديځوال مشران په ښکاره خوشاله ښکارېدل خو بايد دا خبره هم له پامه ونه غورځول شې چې دحسن روحاني تر شا دايران درهبر آيت الله خامنه ای اعتماد هم شتون لري چې دانتخاباتو د کمپاين پر مهال به هغه ددې خبرې يادونه هم کوله او ده ته د رايو ورکونکو په علم کې به هم دا خبره وه نو دحسن روحاني اصلاح خوښونه تر هغه حده پورې نده چې لويديځ لور ته په ميلان تعبير شي لکه دمير حسين موسوي او مهدي کروبي په باره کې چې ويل کېږي.

حقیقت دادی چې حسن روحاني د دواړو خواوو دحمایت نه برخمن دی ځکه خویې په بریالیتوب د تهران تر څنګ دقم په څېر په مذهبي مرکز کې هم دخوښۍ جشن ولمانځل شو.

نو زما په اند دحسن روحاني په اړه سمه تبصره داده چې دهغه یو لاس داصلاح خوښونکو په لاس کې دی او بل یې دایران درهبر آیت الله خامنه ای په لاس کې دی چې له همدې لارې به هغه داصلاح خوښونکو او بنسټپالو ترمنځ دپل یا رابطې چاره په ډېره غوره طریقې ترسره کړي.

باید دا هېره نکړو چې ایران کې دطاقت اصل سرچینه دایران رهبر آیت الله خامنه اي دی چې دهېواد په سطحه دهرې مسئلې دپرېکړې اختیار دهمده په لاس کې دی خو دولس درایو پر مټ دمنتخب شوي ددولت دتر ټولو لوی مشر لاس په داخلي او خارجي چارو او اقتصادي مسائلو کې تر ډېره حده خلاص وي.

دایران اتومي پروګرام روان ساتل او هم دامریکا او متحدینو یې مقابله کول دنوي ولسمشر لپاره ډېره ستره ننګونه ده هغه په خپله وینا کې ویلي دي چې: دنړۍ سره به غوره روابط ټینګ کړي او خپل دیورانیمو دغني کولو پروګرام به هم جاري وساتي، ایران به خپل دا پروګرام بند نکړي ځکه چې دا په هر لحاظ قانوني او شفاف دی لویدیځو هېوادونو بې ځایه دایران اتومي پروګرام متنازع ګرځولی دی، دوئ باید دایراني ولس اتومي حقوق ومني،،

دحسن روحاني دڅرګندونو نه داسې معلومېږي چې دده په راتګ به دایران په خارجه پالسۍ کې څه بنسټیز بدلون رانشي خو حسن روحاني به هم ددوه وړاندینو ولسمشرانو خاتمي او رفسنجانی په څېر دنرم سلوک او لهجې نه کار اخلي، اقتصادي اصلاحاتو ته به داولیت حق ورکوي او دولس دژوند ښه کېدو ته به توجه ورکوي همدې هدف ته په پام سره به دامریکا او نور لویدیځ سره دروابطو دښه کولو په موخه به داتومي پروګرام په پالسۍ کې یو څه کوچني بدلونونه راولي.

دحسن روحاني لهجه به داسې نه وي لکه ددوه ځلي منتخب شوي ولسمشر احمدي نژاد؛ داحمدي نژاد دولسمشرۍ په ۸ کلن دور کې به دامریکا، نور لویدیځ او اسرائیلو سره دجنګ کولو ترحده خبرې کېدلې چې له امله یې دلویدیځ له لورې دایران داتومي پروګرام په اړه زیات شکوک او شبهات ښکاره کړای شوی وو او پر ایران دملګرو ملتونو له لورې سخت اقتصادي بندیزونه لګېدلي چې ورسره دایران اقتصاد سخت زیانمن شو؛ د روحاني سلوک به ددې برعکس ډېر نرم وي خو ایران به دخپل اتومي پروګرام له جاري ساتلو تېر نه شي نو پوښتنه داده چې داتومي پروګرام دجاري ساتلو سره سره به دامریکا او دامریکا متحدین دبندېزونو لرې کولو ته اماده کړای شي؟

په ښکاره خو دا ډېر ګران کار بریښي امریکا او نور لویدیځ څېرو ته نه ګوري؛ خبره داتومي پروګرام دجاري ساتلو او یا هم بندولو ده، ولسمشر بنسټپال وي او که اصلاح غوښتونکی وي؛ هو! یواځې په هغه صورت کې یې امکان شته چې مقابل لورې هم نرمي ښکاره کړي خو د مقابل لورې دنرمۍ تمه هغه وخت ختمه شوه چې داسرائیلو لومړي وزیر بن یامین نتن یاهو پدې تازه ورځو کې یو ځل بیا په ایران دحملې دړ که وکړه. دایران خراب اقتصاد دحسن روحاني لپاره بله ستره ننګونه ده، دتېلو صادرونکي داوپیک دې مهم غړي هېواد کې دپیسو انفلاسیون ۲۸ سلنې ته رسېدلی چې له امله یې ولس دسختې قیمتۍ سره مخامخ دی نو آیا داقتصاد په ښه کولو به حسن روحاني وتوانیږي؟

حقیقت دادی چې ددې تر او دهېواد دخارجه سیاست او داتومي پروګرام سره دی دکوم له امله چې پدې هېواد ستر اقتصادي بندیزونه لګېدلي دي. دحسن روحاني لپاره دریمه ستره ننګونه په سیمه کې دایران په باره کې داعتماد دفضا رامنځته کول دي؛ دمنځني ختیځ دچارو دکارپوهانو په اند داعتماد دفضا رامنځته کولو لپاره باید ایران دخپلو عربو ګاونډیو هېوادونو په شمول دسیمې دټولو عربو او عجمو هېوادونو سره په روابطو له سره غور وکړي؛ دلته خبره یواځې داسرائیلو سره ددښمنۍ دآواز پورته کولو نده؛ دایران داتومي پروګرام په باره کې دسیمې هېوادونه دشکوکو او شبهاتو ښکار دي؛ د سورېې په اوسنو له حده زیاتو حساسو حالاتو کې دمخالفینو په مقابل کې دبشار الاسد ددولت څرګند حمایت او معاونت هم دبې اعتمادۍ یو سبب دی ځکه چې دبشار الاسد ددولت په لاس په زرونو بې ګناه خلک شهیدان شوي دي.

نو دا به راتلونکې کې څرګنده شي چې حسن روحاني ددې ننګونو په مقابل کې سر ټیټوي او که په بریالیتوب یې مقابله کوي.

# داسلامیت او مغربیت ترمنځ کشمکش!

## اسلامي نړۍ کې دتجدید یت اومغربیت ملاتړي اوناقدین

لیکوال :داسلامي نړۍ مفکرعالم مولانا سید ابوالحسن علی "ندوي"رح – ژباړه : ابوظهیر

### نامــق کمـــال :

لـه غربي تهذيب اوعلومو نـه داستفادي کولو ښـه متوازن دعوت اودتر کيې اونوي غرب داړيکو دځرنگوالي ښـه تشريح ددغه هېواد(تر کيې )ديوه نوميالي مفكر "نامق کمال" په اندونو او مضامينو کې ليـدل کېږي ، نوموړي پر هغو برخو کې لـه غربـه داستفادي بلنـه ور کـړي دکومـو پخپلولـو چـې غربـې ولسـونو پرمختگ او بر تري ترلاسه کړه .

ديـادوني وړ ده هغـه(" نـامق کمـال ")پـه کـال ۱۸۴۰ز کـې د (rhobosto) په يوي لوړپوړي او ښـه اسوده کورنۍ زيږدلی و ، دفارسي ، عربي او فرانسوي ژبوزده کړې يې په کور کې بشپړي کړي ، بيا پـه اوولس کلنۍ کې يې رسمي وظيفه واخسته اوپـه ځوانۍ کې دتر کيې دمشهور مفكـر اووطـن پـال مشر ابـراهيم شيناسي (۱۸۲۶ـ۱۸۷۱) څخـه متـاثر شو، هم دهغـه پـه مشهوره ورځپاڼه "تصوير افكار" کې يې ليكوالي پيل کړه ، په ۱۸۶۵ ز کې شيناسي پـه فرانساه کې پنـاه واخسته ، دورځپـاڼې اړونـد ټولې چارې دنوموړي په اوګو بار شوي او هم هلته يې ځان ديوه سياسي ليكوال په تو ګه ښکاره کړ ، دخپل ښيباک قلم او ازادومضامينو پـه وجـه پـه کـال ۱۸۷۱ ز کې دخپـل وطن پريښودو تـه اړيستل شو، دجلا وطنۍ درې کاله يې په لندن ، فاريس او وي يانه کې تير کړل ، په دې موده کې يې هلته دنوي قانون اواقتصادمطالعه وکړه ، پـه کال ۱۸۷۱ز کې بير ته تر کيې ته راغی ، لږه موده وروسته دخپلې مشهوري ډرامي " وطن" له امله (چې دوطن پالنې افراطي جذبات اومينه پکې انځور شوي وه) "قبرص "تـه جلاوطن شو ، پـه کـال ۱۸۷۶ز کې دسلطان عبدالعزيز دمعزولولو وروسته بيا خپل هېواد ( تر کيې) تـه راغـی ،چې داوار هم ژر ددولت لخوا معتوب کړای شو اودخپل ژوند تـر وروستي کالـه پـه بند کې پاتې شو ،چې هم هلته په کال ۱۸۸۸ز کې ومړ .

دازادخيـالۍ او دوطـن پـالنې سربيره نـامق کمـال ريښتونی او کلک مسلمان هم و ، دنوموړي په ليكنو کې دوطن مور (تر کيې) بيا بيا يادوني اساس دفر قي يادلې پـه ځای سيمه ده ، هغه پخپـل دې اند کې دومره اسلامي و څومره چې دعثماني خلافت تصور و ، هغـه ټـول عمـر پـه کلکـه دمسـلمانانو ددويـزو اقـدارو اوعقايـدو منونکی و اوډېـر کر تـه يې دنورو ډلو پـه مشر انو يې لـه دې پلوه تونـدې نيـوکې وکـړې ، چې هغـوئ دپخوانيـو اسلامي اقـدارو پـه ساتنه کې ناکام راغلي وو ، نوموړي له اروپا څخـه هغـه نوي اندونـه راوړل دکومو راوړلو ته چې اړ تيا وه .

ځينو اروپـايي ليكوالو چې داسلام لاربښوني پـه ناسم شكل غوښتل وړانـدې کړي ، پـه هغوئ يې کلكې نيوکې وکړې ، دهغوئ پـه ځواب کې اسلامي کارنامې په ښه تو ګه وړاندې کړې ، تردې پورې چې دعثماني خلافت پـه مشرۍ کې يې دنړيوال اسلامي تحاد نظريـه هم وړاندې کړه، څو هغه (اتحاديه ) په آسيا او افريقا کې خپل جلا کـر دار اورول ادا کـړي او داروپـا پـه مقابـل کـې يومشـر قي ځـواک راوټو کيږي او دځواک له پلوه توازن رامنځته شي .

فروفیسر نیازی بر کس دضیاء ګوک الپ دمضامینو ټولګې په فاضلانه مقدمه کې لیکلې:

هغه سړي چې دنوي حالت ناروغي یې تشخیص کړه اوهغه یې دیوه نوي دولت دجوړیدو په لاره کې د لوی خنډ په تو ګه اومنله هغه نامق کمال (۱۸۸۸-۱۸۴۰)و، نوموړي دهغو دیني ، اخلاقي ، اوقانوني څانګو په اصلي یا مثالي شکل کې دوړاندې کولو کوښښ و کړ، کومې چې اسلام ته منسوبولی شوي او هم یې دعثماني خلافت دعروج دپخواني دور دسیاسي ادارو اصلي اومثالي شکلونه وړاندې کړل ،دغربي تهذیب هغه خواوې یې یوپه یو رابرسیره کړې د کومو دخپلولو اوغوره کولو په وجه چې غربیانو ته ترقي، اوبرتري په برخه شوه ،په دې دریواړو عناصرو دبحث کولو وروسته دې نتیجې ته رسیدلی دی چې د هغو دریواړو ترمنځ کوم اساسي اختلاف نشته ، دهغه په اند: اسلام ټولنې ته اخلاقي اوقانوني بنسټونه ور کړي ، په دولتي چارو کې عثماني اصول اودنړۍ دمختلفو قومونو ترمنځ درواداري آفاقي تګلاره دعثماني اصولو ( ترکیې دولت نه ) دسیاسي قالب اساس ګرځوي اودغربي تهذیب هغه مادي اوعملي لارې او اسلوب یادوي له کومو څخه چې نظام ته څواک او په معاصره نړۍ کې ور ته داقتصادي ترقۍ قوي عنصر په لاس ورځي.

په دې تو ګه نامق کمال نولسمه پیړۍ کې هلته ( ترکیه کې) د ادریواړه یاد عناصر جلا، جلا کړل اودهغو دحدودو نښې یې په ګوته کړې دي ، دهغه په اند دډلو ټپلو دناکامۍ ترټولو لویه وجه ددغو درې ګونو عناصرو په باره کې ذهني انتشار و، مثلا :شریعت اسلامي قانون دفرانسوي قانون پخاطر پریښودل شو اودحکومت ، تعلیم ، اقتصاد اوزراعت په لړ کې غربي لارې چارې غوره نکړای شوې

هغه وایي :دترکیې څخه دنوي ترکیې جوړولو طفلانه ارزو دتنظیمونو مشران دیته اړ کړل چې له دلیل پر ته په اقتصادي اوسیاسي برخو کې داروپایي څواکونواحسانونه اومني ، ددې نتیجه داشوه چې عثماني دولت خپله ازادي اوسالمیت له لاس ور کړ ، ولې هغه په انتظامي چارو کې دنویو جمهوري نظامونو یواصل هم رائج نکړ ، سره ددې چې نه دقدیم عثماني سیاسي اداري په اصولو کې اونه په اسلامي قانون کې داسې کومه خبره وه چې د ترقۍ ،جمهوریت ، یادنوي سائنس سره یې ټکر وای.

لیکن ددې باوجود نامق کمال دومره عام مقبولیت اوزور اغیز د ترکیې یې په ځوان نسل اوپخپله په ضیاء ګوک اودهغه په همزولو و کړ چې وربانديې د اعتراف لپاره د میرمن خالده انجم لاندې الفاظ لیکلي :

نامق کمال دنوي ترکیې ترټولو منلی اوګران شخصیت و ،دترکي افکارو اوسیاسیاتو په تاریخ کې له هغه نه زیات دبل چا شخصیت دومره ندی ځلیدلی څومره چې دنامق کمال دی ، دهغه متوازن فکر اونسبتاً معتدل دعوت دنوي ترکیې په جوړولو کې دومره مؤثر ثابت نشو څنګه چې د"ضیاء ګوک الپ" دغربي تهذیب او سیاست اصولو غوره کولو توند دعوت مؤثر ثابت شو ،ولې دضیاء فلسفي اوفکر ته دعملي بڼې ور کولولپاره ترکیې ته یونهایتي څواکمن اودکار سړی په لاس ورغی ، چاچې دضیاء له تصور اومنشاء څخه هم زیات کار وکړ آن دمغربیت په قالب کې یې دترکیې داچولو عزم وکړ ! هو! هغه دکمال اتاترک شخصیت و.

## دکمال اتاترک فکري روزنه !دهغه ذهنیت ،مزاج اوطبعې ځانګړتیاوې !

دمصطفی کمال پلار علی رضا نومیده ، په کال ۱۲۹۸هق کې په "سالونیکا" کې زیږیدلی و

،دهغه کورنۍ اصلاً د"اناطولیه" په یوه اطرفي کلي کې میشت وه، لومړی په یوه داسې ښوونځي کې شامل شو ، چې پکې زده کړې په اروپایي دود ور کول کېدې ،بیا یو کال لپاره یې په یوه مځني ښوونځي کې زدکړې وکړې ،له هغه وروسته یې په حربي لیسه کې ګډون وکړ ،بیا داستنبول په حربي پوهنتون کې شامل شو ،په پای کې له هغه څخه دیوه پوځي افسر په تو ګه ووت ، دسلطان عبد الحمید زمانه وه، مصطفی دهغه پر ضد په څو سازشونو کې دنیول کیدو وروسته دمشق ته جلا وطن شو، له هغه ځایه په پټه "سالونیکا" ته وتښتیده ،هلته داتحاد اوترقۍ په نوم دیوې ټولنې غړی شو،هم هلته لږ وروسته دپوځ په لیکو کې شامل شو اودمقدونیه داور ګادي لین غځولو چارې ور ته وسپارل شوې ،په ۱۳۲۷هق ۱۹۰۹ز کې سلطان عبد الحمید معزول کړای شو اوپه ۱۹۱۰ کې دنظامي اتشي په حیث فرانسي ته لاړ ، دې سفر هغه دترکیې دپرمختګ په پلانونو اوچارو بې باوره کړ دجرمني مخ پر زیاتیدونکې ترقۍ نارامه کړ ،دغه مهال په ترکیه عملاً دڅلورو کسانو واک و، انور ،طلعت ، جاوید

اوجمال ،مصطفی کمال له هغوئ څلور واړوسره جوړه نه وه اوور سره یې سخت اختلاف درلود ، کمال دنړیوالو اهدافو او له ترکیې څخه دباندې دعثماني سلطنت لـه پراخولواوغځولـو سـره علاقـه نـه درلـوده ، هغـه داپالیسي دهېواد لپاره وژونکې اومضره ګڼله ، بل پلوانور هم هغه نه خوښه و، په کال ۱۹۱۲ز کې دبلقان جنګ شروع شو ،دبلقانې ښارونو څخه دمهاجرینو په هجوم اودهغوئ دنه ویلو په حالت سخت خفه شو، دبلقان په هېوادو کې داختلاف په وجه تر کانو په "اډریانوپل" باندې قبضه وکړه ،انور دجنګ وزیر مقرر شو ، چې په دې توګه هغه دخپلې ترقۍ وروستیومدار جوته ورسید ،انور غوښتل اوپه دې کوښښ کې و چې ټول مسلمانان د"خلیفة المسلمین" تربیرغ لاندې راولي ،انور جرمنیانو ته دتر کیې دپوځې چارو دتنظمولو کار وسپاره ، مصطفی کمال په دې کار سخت خوابدی شو ، په کال ۱۹۱۴ز کې نړیوال جنګ پیل شو انور اودهغه دملګرو په فشار تر کیه له جرمني سره ودریده اوپه جنګ کې یې ګډون وکړ ،مصطفی کمال رایه داوه چې تر کیې ته بیطرفه پاتې کیدل غوره دي ، هر لوری چې فاتح شو،له هغه نه ګټه اخستل پکار دي ، البته کمال دخپلې خوښې خلاف په دغه جنګ کې ښه په زړور تیا اومیړانه برخه واخسته، په ۱۹۱۶ز کې یې په " ګیلي پولي" کې ښه لوبه کارنامه هم ترسره کړه اوله همدې ځایه یې شهرت خور شو، په کال ۱۹۱۶ز کې دقفقاز محاذ ته ولیږل شو ، په کال ۱۹۱۷ز کې دحجاز لپاره قومندان وټاکل شو ، خو دحجاز قومندانۍ چارو دتسلیمولو څخه وړاندې حجاز تخلیه شو ، په همدې کال ور ته دجنرال په حیث ترفیع ور کړل شوه ، هم ور ته ددیاربکر پوځې قومندانې وسپارل شوه ،په کال ۱۹۱۸ز کې جنګ دتر کیې اوجرمني په شکست سره پای ته ورسید ، په دې سره دنر کیې پخواني وزیران دهېواد پرېښودو ته اړشول دکمال لپاره میدان خلاص پاتې شو، بریتانیې او اتحادیانو استبول قبضه کړ ، په اناطولیه کې لویه ګډوډي خوره شوه ، هلته دامنیت قایمولو لپاره مصطفی کمال غوره شو، هغه دیونیانو په خلاف چې "ازمیر "یې نیولی وله سره بیا دجنګ اعلان وکړ ،اوپه کال ۱۹۱۹ز کې د"سقاریه" په جنګ کې یې هغوئ ته دقوي ماتې په ور کولو ځان ته دغازي لقب ترلاسه کړ ، ددې وروسته یې په" انګوره" کې یوازاد حکومت جوړ کړ ، دخلافت اوعثماني سلطنت پای یې اعلان کړ ، یولادین جمهوریت یې جوړ کړ ، دهم هغه بې دینه جمهوریت په کال ۱۹۲۴ز کې لومړی ولسمشر غوره شو اوپه همدې حالت کې په کال ۱۹۳۴ کې ومړ

دکمال اتاتر ک په قیادت کې تر کانو چې دلادینیت (سیکولرزم) اوله خپلې ماضي نه دانحراف بلکې دشدید بغاوت ،جذباتي مغربیت اودعسکري آمریت کوم لوری غوره کړ ، دهغه دوجوه اولاملونو دپیژندلو لپاره ددغه تحریک اورجحان دفکري اوسیاسي قاید ،دنوي تر کیې دلوی معمار "کمال اتاتر ک"دفکري روزنې ، دهغه دمزاجي کیفیاتو ، پیژندلو ته اړ تیا ده ، ولې چې دجمهوریت اوعوامیت دادعاء سربیره هغه هېوادونه چې د پوځې دکتاتورانو تر واک لاندې راغلي ، هغه تر ډېره ځایه دهغه دکتاتور دشخصیت اومزاج انځور ګر ثابت شوي له دې وجې دهغو دنوي تشکیل پیژندلو لپاره دهغو دکتاتورانو (dlctators)اودهغوئ دتر کیبي عناصرو پیژندنه نهایتي ضروري ده ، دلته موږ دکمال اتار تر ک دمستند او همدرد سوانحلیکونکي عرفان اور ګا(irfan orga)دکتاب اتاتر ک(Ataturk) دهغو اقتباساتو په وړاندې کولو بسیا کوو چا چې دکمال په ځانګړې مزاج رڼاچولي :

هغه دلیسې او پوهنتون په زمانه کې ډېر کم دملګرو اودوستانو ترمنځ مقبول و ، دهغه نیږدې ملګري ډېر کم وو ، ډېر ژربه په اشتعال راته ، هغه دخپلې درجې یومثالي اوبې نفسه زده کوونکی هم و، شوقین اوذهین ډېر و، جنس (sex) دهغه لپاره مقناطیسي راښکون درلود هغه د شرابو په څکلو تسکین حاصلاوه ، ولې روحاني تسکین دهغه دننه په خدای اعتقاد و اودمرګ نه په پس ژوند یې یقین نه و .

په نورو د ظلم کولو او وړباندې د خوند اخستو کوم فطري خصوصیت چې دهغه دننه و،هغه یې پټه نه و ، هغه دنورو جذبات هیڅکله هم نه منل ، له دې وجې یې هیڅوک خپل سیال نه ګاڼه ،دهغه دننه دنورو دمفتوحولو اومغلوبولو او دخپلې خوښې لپاره دنورو څملولو فطري ارزو وه ، هغه همیش له نورو څخه ځان په سر کې خوښاوه ، په مناسبتر کې هغه د"روسو او والیټر " دلیکنو سره اشنا شو او له هغو یې وغوښتل چې دده دننه دبغاوت خوبولي څپه راویښه کړي !

په ځوانۍ کې هغه د انقلابي افکارو په لړ کې دضیاء ګوک الپ لاربښوونې ښې په من اوعن سره یادي کړي وي، ضیاء ګوک الپ دروڼ اندۍ او دیني ازادۍ له اندونو څخه دازادۍ لپاره جنګ کړی و ، هغه دمغرب دروڼ آندۍ لوی استازی و، هغه په ۱۹۰۰از کې دافکر څرګند کړ چې عثماني سلطنت لپاره زوال اونتشار مقدر دی ،ولې چې په ښندو

ستر ګوېي شخصي حکومت منلی ، هغه به اکثر ویلي دیني حکومت د شخصي حکومت وفادار اوحلیف دی،هغه دمذهبي واکمنۍ څخه دازادۍ په ترلاسه کولو ټینګار درلودو هغه غوښتل چي دعلماوو واکونه محدود کړای شي ، مختلفي دیني ټولني ،ددین جذباتي ملاتړي کړۍ ( دده په وینا ) دشیطان لارویانوپه کېدو دجهاد غړیپور ته کوي باید هغوئ مقیدي کړای شي، هغه دشریعت دپای ته رسولو اودهغو قاضیانو دمحکمو دمنسوخولو و کالت کاو کومو چي داسلامي قانون شرحه او ترجماني کوله دهغه په اند دهغو په ځای نوي ولسي محاکم جوړول پکار دي

ددین اوپه خاصه تو ګه داسلام په باره کې داتاترک دعقیدي ، دریغ اودهغه داصلي خیالاتو او احساساتو په اړه لیکي:

هغه داحقیقت په ښه تو ګه پېژندلی وچي دده اصلي جنګ ددین خلاف دی ، دکوچنیوالي څخه دهغه په اند:دخدای اړ تیا نه وه ، محض یوه مغالطه یې ګڼله ، هیڅ حقیقت یې نه مانه ، هغه یواځې په هغو یقین درلود کوم څه چي په ستر ګو لیدل کېږي ، دهغه خیال داو چي په ماضي کې اسلام تخریبي ځواک پاتې دی ، اوهغه تر کانو ته ډېر لوی زیانونه اړولي ، هغه په دې حقیقت ستر ګې پټې کړي وي چي یواځې داسلام ښنلې وحدت پراخ عثماني سلطنت تعمیر کړی و، دهغه انګېرنه داوه چي داسلام له امله خلک دجمود او اوهامو په ګرداب کې نښتي ، هغه له هغه سري څخه نفرت کاو کوم چي دتقدیر په مخکې لاسونه غځول، اوویلي یې :داداخدای رضاده ، دتقدیر خبره ده ، هغه په دې عقیده وه چي دخدای وجود نشته ، اوانسان پخپله خپل تقدیر جوړوي ، هغه به اکثر ویلي:چي ددماغو ځواک ، اوارادي قوت دخدای په بې حسۍ اوبې رحمۍ غلبه مومي، هغه ویلي ایا دې دیني خلکوته تراوسه دبریښنایي ځواک اطلاع نده رسیدلې کوم چي ډېر تیز کار کوي ؟دهغه مصممه اراده وه چي دین ممنوع وګرځوي ، اګر که ددې لپاره ځواک کارولو ته هم اړتیا پېښه شي آن دوکې اوفریب کولو ته هم اړ تیاپېښنه شي

په یوبل ځای کې لیکي:

دهغه په اند رواني اصول ، اندونه ، اوفلسفي اصطلاحاتو هیڅ معنی وه له دې وجې یې دتر ک ولس لپاره ددین په غیر ضروري اوبیکاره ګرځولو کې کوم تامل نه درلود خو ددین په ځای چي هغه لپاره کوم نوی څېز رابښکونکی و هغه مغربي تهذیب و ،ولي هغه دا نه ویلي چي یو ولس دي دخپل روح لپاره جنګ وکړي ، دنورو تهذیبونو له پخوانې تاریخ یې داسبق حاصل کړی و: "چي زوړ دیو ژر نه مري "له دې وجې دتر کانو له زړونو دخدای خیال وتل به وخت وغواړي

بل ځای لیکي:

داسلام اوراسخ العقیده ادیانو څخه هغه سخت نفرت کاو، دکوم خدای چي هغه قایل و ه هغه دهغه په اند:دکوم بندیز اوقید لګولو محتاج نه و، دهغه په اند:خدای په هرڅېز کې و، هغه ویلي:مونږ باید له هره پلوه نارینه وګرځو، مونږ ډېر لوی مصیبتونه وزغمل ، زمونږ دمصیبتونو لامل داو چي مونږ په دې باندې دپوهیدو کوښښ ونکړ چي نړۍ کوم خوادرومي ، مونږ له دې پرواپر ته چي څوک هر څه ووایي مونږ مهذب یو اوشائسته سالاري کوو ، مونږ ته په دې فخر پکار دي ، دنوري اسلامي نړۍ په مسلمانانو نظر واچوئ هغوئ دڅومره حوادثو اومصیبتونو ښکار دي ولې ؟له دې وجې چي هغوئ دخپلو مغزونو څخه کار نه اخلي اوځانونه یې په هغه روښانه اولوړ تهذیب کې ځای نکړ ای شول دغه لامل وچي مونږ هم تر اوړدې زماني دبیر ته پاتیوالي او تنزل ښکاروو ، په دې وروستیو څو کلونو کې کـه مونږ دځانونو په ژغورلو کې کامیاب شونو وجه داوه چي زمونږ ذهنونه روښانه شول خواوس مونږ په هیڅ ځای کې تم کېدای نشو ، مونږ دوړاندې پر مختګ لپاره پور ته شویو مونږ پرلپسي وړاندې ځو ، که هرڅه پیښ شول اوس مونږ ته له دې پر ته بله لار نده پاتې ، قوم ته پوهیدل پکار دي چي تهذیب یوداسې بل اوردی چي هغه هرڅه سیزي اوتوري خاوري یې کوي ،څوک چي هغه ته دعقیدت خراج نه ور کوي

په یوبل ځای کې ددې نفرت اظهار کوي اولیکي:

داکومه پټه اودراز خبره نده چي مصطفی کمال یوبې دینه سړی و ، په دې وجې داافواه ښه ګرمه وه چي دخلافت تنسیخ ژر راتلونکی دی ،په دې خبره اندیښنه نوره هم زیاته شوه چي مصطفی کمال دشیخ الاسلام په سر (څوک چي داسلام لوی عالم و اوداحترام وړ مشر و) قرآن مجید ور وویشته ! ددې په نتیجه کې باید مصطفی سملاسي وژل شوی وای ، خوداسې ونشول چي داددې خبرې ژوندی ثبوت دی چي زمانه بدله شوې وه

نوربیا

# د ټولو ديني مدارسو لپاره واحد تعليمي

# نصاب

| طلب العلم فريضة على كل مسلم ومسلمة ( الحديث ) | دعلم زده کړه په هرنارينه ، او ښځې باندې فرض ده . |
|---|---|

دپورتني حديث شريف په رڼاکې زمونږ دمسلمان ، مجاهدملت دبچيانو لپاره دعلم حاصلول يو ضروري امر ګڼل کيږي .

نوداچې مونږ دتدريس ، او تعليم ، په ځانګه کې ترټولو زيات خدمت کړي وي ، او دطالب العلم په علمي پانګه کې مو ټولې نيمګړ تياوې له منځه وړې وي ، نو ديو واحد تعليمي نصاب رامينځ ته کېدو ته چې په علمي زده کړه کې کليدي حيثيت ولري ضرورت محسوس کېده .

پدې اساس دافغانستان اسلامي امارت دښوونې ، او روزنې عالي کمېسيون تصميم ونيوه ترڅو دهيواد دجيدو علماء کرامو ، مدرسينو ، او علمي بورډ په پوره همکاري دټولو ديني مدارسو لپاره يو واحد تعليمي نصاب چې دهيواد ټولو علماء کرامو ، مدرسينو ، او طالب العلمانو ته دمنلو وړوي ترتيب او منظور کړ . چې دابه دطالب العلمانو لپاره دعلم په زده کړه کې اسانتياوې رامنځ ته کړي . او

ديولسو کلونو په موده کې به دلوېي دورې په شمول خپل ټول ديني تعليم سر ته ورسوي .

البته : پدې کې شک نشته چې ټول ديني کتابونه په يو ډول تيار شوي دي ، او الحمد لله محترم مدرسين يې دتدريس کولو پوره وړ تيالري ، مګر په ځينو مدارسو کې به په تدريسي چارو کې خنډ رامينځ ته کېده ، ولې خوشبختانه ددې واحد نصاب په رامينځ ته کېدو سره به دمدارسو تر مينځ اتفاق ، او همغږي ، او تعليمي يووالي رامينځ ته شي ، چې نوموړي نصاب په لاندې ډول دی .

| ابتدائيه | | |
|---|---|---|
| عدد | فن | اسماء الکتب |
| ۱ | قرآن کريم | مشق رُبع اخير پاره عم مع حفظ |
| ۲ | ادب فارسي (نظم) | پنج کتاب ( باللفظ) |
| ۳ | فقه | شروط الصلوة ، بعده ، خلاصه کيداني |
| ٤ | صرف | صرف بهايي ، بعده ، ميزان الصرف ، بعده علم الصرف ( ثلاث حصص ) |
| ٥ | خط | خط ، وکتابت |
| ٦ | حساب | دتيږ جهاد دوقت ،دګډ تعليمي نصاب داول ، او دوهم صنف حساب |

| متوسطه | | |
| --- | --- | --- |
| عدد | فن | اسماء الكتب |
| ١ | قرآن كريم ، وتجويد | جمال القران ، مع مشق ، وحفظ ربع ثالث پاره عم |
| ٢ | فقه | قدوري ، ( صلوة) |
| ٣ | صرف | ارشاد الصرف ، بعده زرادي |
| ٤ | نحو | علم النحو ، بعده ، تسهيل النحو |
| ٥ | ادب عربي | تسهيل الادب ، بعده ، مفيد الطالبين |
| ٦ | خط | حسن خط |
| ٧ | حساب | دتېر جهاد دوقت ، دګډ تعليمي نصاب د دريم صنف حساب |

| درجة ثانية | | |
| --- | --- | --- |
| عدد | فن | اسماء الكتب |
| ١ | تجويد ، واخلاق | معلم التجويد ، بعده تهذيب الاخلاق |
| ٢ | ادب فارسي | گلستان ( بالترجمة ) |
| ٣ | فقه | كنز الدقائق ( اولين ) |
| ٤ | صرف | مراح الارواح |
| ٥ | نحو | شرح مائة عامل (بالتركيب ) |
| ٦ | اللغة العربية ، والانشاء | القرائة الراشدة ( ج اول ) بعده معلم الانشاء ( ج اول ) |
| ٧ | ادب عربي ، وحساب | نفحة العرب ، وربېسي دتېر جهاد د وقت دګډ تعليمي نصاب دپينځم صنف حساب |

| درجة اولى | | |
| --- | --- | --- |
| عدد | فن | اسماء الكتب |
| ١ | قرآن كريم ، وتجويد | الفوائد المكية مع مشق ، وحفظ نصف اول پاره عم |
| ٢ | ادب فارسي | پنج كتاب ( بالترجمة) |
| ٣ | فقه ، وحديث | نورالايضاح ، بعده زادالطالبين |
| ٤ | صرف | علم الصيغة بعده زنجاني |
| ٥ | نحو | نحومير ، بعده الشمة |
| ٦ | اللغة العربية | الطريقة العصرية (مكمل) |
| ٧ | خط ، وحساب | دتېر جهاد دوقت دګډ تعليمي نصاب دڅلورم صنف حساب |

| درجة ثالثة | | |
| --- | --- | --- |
| عدد | فن | اسماء الكتب |
| ١ | عقائد | الفقه الاكبر ، بعده ابوالمنتهي والانتباهات المفيدة |
| ٢ | فقه | شرح الوقاية (صلوة) |
| ٣ | صرف ولغة عربي | فصول اكبري بعده قرائة الراشدة ( ج ثاني ) |
| ٤ | نحو | هداية النحو |
| ٥ | سيرت وانشاء | نوراليقين ، بعده معلم الانشاء( ج ثاني ) |
| ٦ | منطق | تيسير المنطق ، بعده ايساغوجي ، بعده ميرايساغوجي |
| ٧ | ادب فارسي | بوستان (بالترجمة ) |

## درجۂ رابعة

| عدد | فن | اسماء الکتب |
|---|---|---|
| ١ | اصول حديث ، وحديث | خير الاصول بعده اثار السنن (مكمل ) بعده رياض الصالحين ( كتاب الادب فقط) |
| ٢ | فقه | شرح الوقاية ( نكاح) |
| ٣ | نحو | كافية ( مكمل ) |
| ٤ | اصول الفقه | اسان اصول فقه بعده اصول الشاشي |
| ٥ | بلاغة ، وتاريخ | دُرُوس البلاغة بعده مختصر تاريخ اسلام للقدواني |
| ٦ | منطق | مرقات بعده شرح تهذيب |
| ٧ | ادب عربي | مقامات حريري ( عشرمقامات ) بعده مختارات من الادب |

## درجۂ خامسة

| عدد | فن | اسماء الکتب |
|---|---|---|
| ١ | تفسير | ترجمه قران كريم ( الثلث الاول ) |
| ٢ | حديث | كتاب الا ثار للامام محمد رحمه الله بعده رياض الصالحين (ازكتاب الجهاد تا اخر كتاب الدعوات |
| ٣ | فقه | كنز الدقائق ( اخرين ) |
| ٤ | اصول الفقه | نورالانوار ( مكمل ) |
| ٥ | نحو | شرح الجامي ( معرب ) |
| ٦ | علم البلاغة | تلخيص المفتاح ( مكمل ) |
| ٧ | منطق وتاريخ | بديع الميزان بعده تاريخ الاسلام للشُريقي |

## درجۂ سادسة

| عدد | فن | اسماء الکتب |
|---|---|---|
| ١ | تفسير واخلاق | ترجمة القران الكريم ( الثلث الثاني ) بعده الطريقة المحمدية |
| ٢ | حديث وحساب | مسند الامام الاعظم رحمه الله بعده خلاصة الحساب |
| ٣ | فقه | هداية ( صلوة ) |
| ٤ | اصول الفقه | الحسامي ( مكمل ) |
| ٥ | نحو | شرح الجامي ( مبني ) |
| ٦ | علم البلاغة | مختصر المعاني ( مكمل ) |
| ٧ | منطق | القطبي ( مكمل ) |

## درجه سابعة

| عدد | فن | اسماء الکتب |
|---|---|---|
| ١ | تفسير ، واصول الحديث | ترجمة قران كريم ( الثلث الاخير ) بعده تيسير مصطلح الحديث |
| ٢ | فقه | هداية – النكاح ( مكمل ) |
| ٣ | اصول الفقه | مولوي يعقوب ( تاقياس ) |
| ٤ | عقائد | شرح العقائد ( مكمل ) مع الخيالي |
| ٥ | علم البلاغة وعلم الهيئة | مطول ، بعده الهيئة الوسطى |
| ٦ | منطق | سلم العلوم ( مكمل ) |
| ٧ | حكمة وتاريخ | هداية الحكمة بعده تاريخ التشريع الاسلامي |

## درجۂ ثامنة

| عدد | فن | اسماء الكتب |
|---|---|---|
| ١ | حديث | اللباب في الجمع بين السنة والكتاب ( للامام ابي محمد على بن ذكريا المنبجي الحنفي ) |
| ٢ | اصول الفقه | مسلم الثبوت ( تاباب ثالث ) بعده تلويح وتوضيح |
| ٣ | ميراث | تسهيل الفرايض بعده السراجي مع الشريفية |
| ٤ | صرف | شافية ( مكمل ) |
| ٥ | منطق | ملاجلال ، وميرزاهد |
| ٦ | حكمت وهندسه | ميبذي بعده او قليدوس |
| ٧ | علم الهيئة وادب | التصريح بعده ديوان الحماسة |

درجة عاشرة ( موقوفة عليها )

| عدد | فن | اسماء الكتب |
|---|---|---|
| ١ | اصول التفسير وتفسير | الفوز الكبير ، والتفسير البيضاوي |
| ٢ | تفسير | جلالين ( جلد اول ) |
| ٣ | اصول الحديث وتفسير | شرح نخبة الفكر بعده جلالين ( جلد ثاني ) |
| ٤ | حديث | مشكوة المصابيح ( جلد اول ) |
| ٥ | حديث | مشكوة المصابيح ( جلدثاني ) |
| ٦ | فقه | هداية ( البيوع ) |
| ٧ | فقه | هدية ( الشفعه ) |

درجة تاسعة

| عدد | فن | اسماء الكتب |
|---|---|---|
| ١ | اصول التفسير ونحو | التبيان فى علوم القران للصابوني الحنفي بعده عبدالغفور |
| ٢ | اصول حديث | تدريب الراوي بعده اصول البزدوي ( مبحث السنة) |
| ٣ | ادب فارسي | مثنوي شريف |
| ٤ | علم العروض ، علم المناظرة | متن الكافي بعده محيط الدائرة بعده الرشيدية |
| ٥ | منطق وعلم الطب | قاضي مبارک بعده قانونچه |
| ٦ | منطق وعقائد | حمد الله بعده الامور العامة |
| ٧ | حكمت وادب | صدرا بعده السبع المعلقات |

درجة حادي عشر ( دوره حديث )

| عدد | فن | اسماء الكتب |
|---|---|---|
| ١ | حديث | صحيح البخاري |
| ٢ | = | صحيح مسلم |
| ٣ | = | جامع الترمذي |
| ٤ | = | سنن ابي داؤد |
| ٥ | = | الطحاوي ( مكمل ) |
| ٦ | = | سنن النسائي ، سنن ابن ماجه |
| ٧ | = | موطائين ، شمائل الترمذي |

**پورتني نصاب دابتدائي او متوسطي په شمول په يولس درجو کي دټولو افغاني ديني مدارسو لپاره واحد نصاب ترتيب شوي او په عملي کولوېي هر محترم مدرس ، او طالب العلم مکلف دي .**

**ومن الله التوفيق**

زلمي افغان:........

# د مجلې ژورنالیزم

# Magazine Journalism

دویمه برخه......

د موضوع له مخې د رسالو وېش لوستوالو ته اسانتیاوې برابروي.

د محتوا یا موضوع له مخې مجله او رساله په ګڼو موضوعاتو خپرونې کوي.

ډېرې مجلې مسلکي وي او مسلکي موضوعاتو باندې ډېر تمرکز کوي. د ساري په توګه د سیاست، ادب، نړیوالو پېښو، زده کړې، لوبې، پخلی، اقتصاد، مېرمنو، ساینس، طب، ځمکپوهنې، هنر او یو شمېر نورو مسلکونو په اړه مجلې او رسالې خپرېږي.

### ۱ــ دیني- فکري مجلې( Religious / Theoretical Magazine):

دیني- فکري مکتبونه او مذهبي کړۍ د خپلو دریځونو او مسلکونو د دودېدا لپاره ځانګړې مجلې او خپرونې لري. د دغو مجلو منځپانګه په دیني لیکنو، فقهي ښوونو، لارښوونو او علمي فکري توکیو سره بشپړېږي. همدارنګه د لوستونکو لیکونو او پوښتنو ته ځوابونه هم وایي. (لکه: آذان، مشال، شهامت (دارلافتاء)، ندای حق او ...)

### ۲. ټولنیزې مجلې (Social Magazine):

په دغو مجلو کې د ټولیز زړه راښکون توکي خپرېږي. دغه مجلې پر ځانګړو سکالوګانو ډډه نه کوي. مذهب، ادب، غونډې،

سیاست، لوبې، هنر او نور یې د منځپانګې بنسټ جوړوي. په دغو مجلو کې د ټولنې د هر پاټکي ذوق او لیوالتیا په پام کې نیول کیږي.(خلافت، عزم، توکل، ځرک او نورې یې غوره بیلګې بللای شو)

### ۳.علمي او څېړنیزې مجلې:

دغه مجلې زیاتره پر علمي او څېړنیزو مسالو غږېږي. د نړۍ ډېر علمي او څېړنیزې مجلې د تګلارو له مخې سره ورته دي. په دغو مجلو کې د ښکلا او سینګار پر ځای پر منځپانګه (محتوا) ټینګار کېږي. (لکه د امارت د واکمنۍ پر مهال آریانا مجله، کابل مجله، کتاب مجله، کندهار مجله، ننګرهار مجله او ...)

### ۴- ښوونیزې مجلې (Educational Magazine):

بیلابیلې مدرسې، لیسې او پوهنتونونه د خپلو کالنیو چارو او هلو ځلو د څرګندولو لپاره کالنۍ مجلې یا رسالې خپروي. په دغو خپرونو کې د لیسو او پوهنتونونو د زده کوونکو او استادانو لیکنې او انځورونه خپرېږي. د ډېرو ښوونیزو مجلو کار کوونکي هم پخپله زده کوونکي وي او ځینې استادان یې لارښوونه په غاړه اخلي.

(لکه: د کابل پوهنتون مجله، د کندهار پوهنتون مجله، په پاکستان کې د کراچۍ دارالعلوم مجله (البلاغ) او ...)

### ۵- ادبي مجلې(Literary Magazine):

په دغو مجلو کې ادبي څېړنې، پنځونې (لکه لنډه کیسه، شعر، ادبي ټوټه او...) بېلابېلې لیکنې، شعرونه، کره کتنې او نور توکي خپرېږي. د ادب مینه وال، شاعران او لیکوال له دغسې خپرونو سره ډېره دلچسپي ښيي. (لکه: الفت، سپیدې، ګندارا، داستانونه، پښتو کیسه ډایجسټ او ... یې غوره بېلګې دي)

### ۶- خبري مجلې (News Magazine):

دغه مجلې زیاتره د خبرونو سپړونکي توکي خپروي، اکثره یې اونیزه بڼه لري، یعنې په اونۍ کې یو ځل خپرېږي. خبري مجلې له خبرونو سره په تړاو بیلابیلې لیکنې او زړه راښکونکي مطالب خپروي. دا چې زیاتره سیاسي توکي خپروي، ځکه خو یې سیاسي مجلې هم بولي.

(غوره بیلګې یې د اسلامي امارت د فرهنګي کمیسیون تر اشراف لاندې ضمیر، الهام، مورچل او نورې دي.)

## ۷- ښځينه مجلې (Women's Magazine):

ځينې مجلې يوازې د ښځو او مېرمنو لپاره خپروني کوي. په دغو خپرونو کې ډېرې ښځينه مطالب لکه مور او ماشوم، روغتيا، تدبير منزل، پخلی او نور خپرېږي. له بده مرغه زموږ ارزښتونو ته ژمنو رسنيو دې برخې ته ګرسره هېڅ يا ډېر لږ پام اړولی او زموږ دښمنانو په تېره غرب له دې لارې د خپلو موخو د ترلاسه کولو لپاره کافي ډېر کار کړی. د ساري په توګه په کابل کې د اشغالګرو تر مستقيم تمويل لاندې خپرېدونکي روز، مرسل، زن او نورې مجلې که موږ وګورو کاملاً زموږ له لوړو اسلامي او ملي ارزښتونو سره په ټکر کې دي. دوی د ښځو نيمه بربنډ عکسونه، سينمايي ځېرې او نور مبتذل توکي پکې خپروي. (ګودر او ملالۍ نسبتاً ښځينه مجلې بللای شو)

## ۸- د ماشومانو مجلې (Children Magazine):

په دغو مجلو کې د ماشومانو لپاره مطالب خپرېږي. ټوکې-ټکالي، غوره وينا وي، په زړه پورې او حيرانونکي معلومات، جالبې کيسې او د ذهني ودې لپاره بوختونکي او تفريحي توکي. په نوره نړۍ کې دې برخې ته خورا ډېر کار کېږي او ماشومانو هم ورسره خورا دلچسپي لري.

(په افغانستان کې د ماشومانو لپاره تر ټولو لومړنۍ خپرونه سراج الاطفال نومېږي چې له سراج الاخبار سره يو ځای خپرېده، مصور او ...)

## ۹- ورزشي مجلې (Sports Magazine):

ورزشي خپروني د نړۍ په ګوټ-ګوټ کې مينه وال او لوستونکي لري. په دغو مجلو کې د بېلابېلو لوبو په اړه ليکنې، تبصرې، شننې، خبرونه او مرکې خپرېږي. د لوبو مينه وال يې په ډېره مينه او ليوالتيا لولي. (لکه لوبه او ياران سپورتي مجلې يې په هېواد کې او سنۍ بېلګې دي)

## ۱۰- طنزيه مجلې:

زموږ په معاصرو ادبياتو کې نن سبا طنز هم د يوه بېل او جلا ژانر بڼه خپله کړې ده. له طنز سره د ټولنې بېلابېل قشرونه او پاټکي مينه ساتي. دا چې د طنز جوله عموماً انتقادي وي؛ نو ډېرې مهال دغسې مجلې بې نوم و نښانه خپرېږي؛ خو په هغو ټولنو کې چې مطبوعاتو ته نسبي او تر ځينو عمومي چوکاټونو لاندې آزادي او اجازه شته، هلته معلوم ادرس او کاري ټيم لري.

(په هېواد کې د پښتو طنزيه خپرونو غوره بېلګې ښايي ښاخۍ او غومبسه وي)

## ۱۱- مسلکي خپروني (Professional Magazine):

د عمومي خپرونو ترڅنګ ځينې ادارې د مسلک په پام کې نيولو سره ځانګيزې او مسلکي خپروني کوي. دغه خپروني په طب، روغتيا، ښوونې-روزنې، کرنې او نورو ځانګو پورې تړل کېږي.

(غوره يې د ځينو وزارتونو خپروني دي. لکه: د کرنې وزارت (کرهڼه)، د ماليې وزارت (ثروت) او ...)

## ۱۲- تشهيري مجلې:

ځينې ادارې، سوداګريز شرکتونه او بنسټونه د خپل شهرت او مشهورتيا لپاره ځانګړې رسالې او خپروني لري، عموماً يې په خلکو وړيا ويشي.

دا ډول خپروني يوازې تبليغاتي بڼه لري او هېڅ علمي، ادبي، ارشيفي او ژورناليستيکي ارزښت نلري.

(لکه: په هېواد کې د امريکايي او بهرنيو اشغالګرو خپروني د آزادۍ غږ، سولې غږ او ...)

## ۱۳- تاريخي- فلسفي مجلې:

لکه نومه يې چې بريښي، دا ډول مجلې په خپلو پاڼو کې يا يوازې تاريخي فلسفي مطالب ګډ خپروي او يا تاريخي مجله د تاريخي او فلسفي مجله د فلسفي مطالبو خپراوي ته ځانګړې شوې وي.

(پرون، روهي او ... يې غوره بېلګې دي)

تر دې ځايه راسره د مجلو په ځانګړيو ډولونو او وېش وپوهېدئ. په بله ګڼه کې به د مجلو د مطالبو او موادو پر سرچينو، له ورځپاڼې سره پر توپيرونو، اداري او تشکيلاتي جوړښت او ځينو نورو مهمو ټکيو لنډه رڼا واچوو. نور بيا ...

# سـرداره غـازي

سید سعید

دمیوند دمشهوري غزا یوه غیرمشهوره اتله میرمن سرداره غازي ده ،سرداره غازي دملاعبید الله لوراودامیرشیرعلیخان دوزیرسردارمحمدرفیق خان لودین خورده ، دکندهارښارپه بروبازارکي يې کورنۍ اوسیدله ،دسرداري دژوند ملګری )خاوند )سردارمقصود خان محمدزی نومیده چې دامیردوست محمدخان دوروررجمعه خان لمسی کیدهاودکندهارپه میوندکي يې خپله کلااوکاریز درلود ،همداکاریزاوس د کاریزک په نوم مشهوردی.

د۱۲۹۷هقکال دبرات پر۱۵مه دسپه سالارغازي محمدایوبخان په مشري افغان مجاهدینو دپرنګي اشغالګردښمن سره په میوند کي دجګړې تابیانیوله ،افغان غازیان دوسلو اولوژیستیک دډیر کمښت سره مخوو، ځواک يې په هیڅ ډول ددښمن دقوت سرهد پرتلې ورنه ؤ، خو ایماني قوت يې دومره پیاوړی ؤچې دمجهزدښمن هرځه ورته هیڅ ښکاریدلاو په وړاندي يې ملاتړلي دجنګ میدان کیولاړوو ،غازیانو په خوراوچت مورال دجګړې په ډګرکي ددښمن سره دډغري وهلو شیبې شمېرلې اوشعارېې ؤ چې:

یابه پرنګ له ملکه باسو

یابه ایږدو پر خپل وطن باندي سرونه

دبراتپر۱۷مه ورځ دافغان غازیانواوپرنګي لښکرو تر منځ دمیوند په دښته کي سخته جګړه ونښته ، ،لهیوې خوادا سد دپنځمي ورځي دتودوخي ګراف ساعت په ساعت پورته کیده پرمځکه اوهوایې خپل اغیزښکاره کاوه، له بلي خوابیا دواړولوریوپریوبل ګوزارونو تهزورورکاوه او جګړې شیبه په شیبه شدت موندو ،دورځي دلسوبجوپه شاوخواکي غازیان تږي شول خولې يې داسي وچي وې چي دالله اکبرویلو سېکېکي نه ؤ. ډیروښځوپه دغه غزاکي دمجاهدینوسره همکاري کوله ،ځینومیرمنو اوبه اوځینوبارو دغازیانوتهرسول، سرداري غازي بیاپه خپله کلاکي پهلسهاووښځي راټولي کړي وې دغازیانولپاره یې ډوډۍ پرې پخه وله

سردارهدغرمې په رانژدیکیدلوسره په جګړه کي دغازیانودحال معلومولوپه موخه دکلابرج تهپورته شوه ،که ګوري چې غازیانوروستیوسنګرونوته عقب نشیني کړې ده ،دهمدې حالت پهلیدلوېې

دخپلو ورونو غازیانو سره اوږه په اوږه د پرنګ پرضد د جنګیدو عزم وکړ، ځان یې پهپړونې کې تاوکړ، وسله یې راواخیستله اودورونو مرستې ته یې دجګړې په اوج کې ځان ورساوه، په دې جګړه کې نورې میرمنې هم وېځینو یې غازیانوته اوبه اومهمات رسول ،ځینو بیادورونو سره څنګ پرڅنګ وسله واله مبارزه کوله اودغازیانو دروحیېلوړولو په موخه یې حماسي لنډۍ هم ویلې ،ترټولو مشهوري لنډۍ چې په دغه غزاکې ښځوویلې دهغې پیغلې دي چې دملالۍ په نوم یادیږي اوددې ناربېه کولویې چې:

کهپه میوند کې شهید نه شوې

خدایږو لالیهبې ننګۍ ته دې ساتینه

دغازیانو مړاویهیلي ،لویدلی مورال اوساړه احساسات داسې لوړې کچې ته پورته کړل چې تقریبا دغازیانو ماتهیې په سوبه واړوله .

افغانغازیانو په ټکنده غرمه کې دپرنګ دپر مختللو وسلواومجهزووحشي لښکروپه وړاندې پهلړو اوکمزورووسلواتلوالي مبارزې ته ادامهورکړه ،دغازیانو داستقامت برکتؤچې ترسختیجګړې وروسته یې دماپښین په وخت کې دنړۍ قوي ځواک پرنګي لښکر شاتګ ته مجبورکړاودکندهاردښارلورته یې پښې سپکیکړې.

سردارهغازي ترسوبې وروسته په داسې حال کې خپلیکلاته ستنیده چې دپرنګي افسریو ټوپک اواس یې غنیمت کړي وو ،دسرداري ولجه کړی ټوپکد سردارجمعه خان په کاله کې ترډیره وخته دمیوند ستریسوبې دیوارزښتمن اثراویادګارپه توګه خوندي وو.

علامهرشاد دکارنامومیرمني په ۱۷-۱۸مخ کې دحاجي محمد ابراهیم خان لودین له خولې ددغې حماسېنقل کوي اوزیاتوي چې دسرداري حماسه ملامیریحی د نظم په تارپېیلې چې لاندې درې بندهیې دښاغلي لودین په غیرمنظم ډول پیادؤ اوماځنې ولیکل

راووته سرداره له کلاپه نیت دجنګ نازیږه په میونده

دېوویل :ماولیدې ګولې دپرنګیانو مرګیدی دغازیانو

ځوانانـدي چې رژیږي دوطن پرنام وننګ ودااخیله ژونده

دېوویل :ماولیدې سرې وینې دي بهیږي ځوانان دي قتل کیږي

لښکردپرنګیراځي میدان ته په غورځنګ بېلیږیهارله قنده

دېوویل :ماولیده غازیان دکندهار تپیږیوارپه وار

ځوانانرغړي په وینوکې له لاسه دپرنګ پرنګتپ کې خاونده

افغانومیرمنودتاریخپه بیلابیلوپړاونوکې دخپل دین اووطن پهدفاع کې په مختلفوشکلونونه سترې کیدونکې اونه هیریدونکې خدمتونه کړي دي ،خپله یې هم دورونوسره اوږه پراوږهجهادکې برخه اخیستې ،زخمونه یې خوړلي اوشهادت جامونه یې پرسراړولي ، زامن،ورونهاودژوند ملګري یې هم دښکېلاکګرو پرضد دغزاګرم ډګرته هځولي اواستولي ،پرزخم، بنداوشهادت یې صبرکړی اوپه ډیره میړانه یې دیتیمانوپالنه اوروزنه ترسره کړې ده.

ماخذ:[دکارنامومېرمني،رشادعلامه عبدالشکور}





## فروپاشی سلطنت فاطمیان و افتخاری دیگری برای سلطان

سیطره سلطان صلاح الدین بر مصر نقطهٔ انقراض و فروپاشی دولت عبیدیان[1] که به فاطمیان شهرت داشتند بود، دولتی که دو قرن و 68 سال بر مملکت اسلامی حکومت کرد و بر فرهنگ، اخلاق و تمدن بخش عظیمی از جهان اسلام تأثیر شگرفی بجا گذاشت، دوران آنان از عقاید و احکام عجیب غریب و قوانین مضحک مملو بود که برخی از آن را از کتاب «انحطاط والآثار» مقریزی نقل می کنیم:

«در باره میراث دستور دادند که به «ذوی الارحام» رد شود و اعلام کردند که اگر متوفی دختری از خود به جا گذارد با وجود دختر به برادر، خواهر، عمو، جد، برادرزاده و عموزاده میت هیچ سهمیه‌ای از میراث ندارند، و در صورت وجود فرزند پسر و یا دختر تنها شوهر، همسر، پدر و مادر و جده کسی دیگر میراث نمی‌برد، و با وجود مادر تنها به افرادی میراث می‌رسد که در صورت وجود فرزند به آنان میراث می‌رسید».

خروج از این قانون را عداوتی با حضرت فاطمه ل می‌پنداشتند «روزه و عید رمضان به حساب آنان بستگی داشت و طلب هلال از مصر کلاً برچیده شد».

«در سال 372 عزیز بن المعز خواندن نماز تراویح را در مصر ممنوع کرد».

«در سال 381 مردی را تنها به این جرم که نزد او کتاب «الموطأ» مالک بن أنس رضي الله عنه یافته شده بود، شلاق زدند و او را در شهر تشهیر کردند»[2].

«و در سال 393 هـ 13 نفر را به این جرم که صلاة الضحی خوانده اند دستگیر و آنان را بر شتر سوار کرده و در شهر تشهیر کردند و سه روز آنها را حبس کردند».

---

(1)- محققان أنساب اتفاق نظر دارند که عبیدیان هیچگونه نسبتی با اهل بیت نبوی ندارند، بلکه به مردی مجوسی به نام عبید نسبت دارند، قاضی ابوبکر محمد بن الطیب در کتاب خود «الکشف عن أسرار الباطنية» و قاضی عبدالجبار در کتابش «تثبیت دلائل النبوة» و علامه مقدسی در کتابش «کشف ما کان علیه بنوعبید» این موضوع را به خوبی و مفصلاً بیان کرده اند.

(2)- الخطط والآثار، ج 1 / 340.

«و در سال 395 بخش‌نامه‌ای دیگر بر مردم قرائت شد که خوردن ملوخیا را که یکی از غذاهای سنتی مصریان بود، فقط به این دلیل ممنوع کرد که معاویه بن ابی سفیان ب به آن علاقه داشت و سبزی معروف جرجیر (ترتیزک) را نیز ممنوع قرار دادند، زیرا حضرت عایشه ل به آن علاقه داشت».

«در ماه صفر همین سال بر تمامی مساجد و داخل و خارج و تمامی دیوارهای جامع العتیق مصر و بر درهای مغازه‌ها و سنگ‌ها و قبرستان و صحرا برای اسلاف دشنام و نفرین نوشته شد و با رنگ‌های مختلف آنها را رنگ‌آمیزی نموده و با طلا نقش کردند»(3).

«شرابخواری، غنا و موسیقی و نوشیدن آبجو عام گشت، مردم به لهو و لعب و خوش گذرانی روی آوردند، در این دوران مردم از بیماری‌ها و بلاهای زیادی رنج می‌بردند، مردم به کاخ سلطنتی هجوم برده و فریاد برآوردند «الجوع الجوع» (گرسنگی رنج می‌بردند گرسنگی) ای امیرالمؤمنین پدر و جد تو با ما چنین نکرده بودند، تو نیز از خدا بترس و برای ما چاره بیاندیش»(4).

«در سال 424 هـ ولیعهد که در آن هنگام هفت سال بیش نداشت سوار بر مرکبی از خیابان‌های آذین شد، مصر عبور کرد و مردم در برابرش تعظیم نموده و زمین را می‌بوسیدند و آن زمان برایش از مردم بیعت خلافت گرفتند»(5).

حکومت سلطان صلاح الدین ایوبی پایان این دوران عجیب و مضحک و فاتحهٔ عهد جدیدی بود، آثار و نشانه‌های مذهب عبیدیان کم کم از مصر رخت برمی‌بست، سنت شکوفا شد و همه جا را فرا گرفت، مدارسی تأسیس شد و علمای اهل سنت در آنها به تدریس علوم شریعت اسلامی پرداختند، رسوبات دوران عبیدیان کم کم محو و ناپدید گشت، در وطن و مرکز خود غریب مطرود و آواره شده بود.

در عصر عبیدیان، اسلام به آزمایشی بزرگ و محنتی عظیم گرفتار بود، به محارم و شعایر الهی هتک حرمت کردند و شریعت اسلامی را بازیچهٔ خود ساختند و به سنت و عقاید اسلام توهین کردند، علمای اهل سنت مقهور و مستضعف و ذلیل بودند، نه حرمت و ارزشی داشتند و نه شوکت و سلطانی، اما گردنکشان، اوباشها و فرومایگان کاملاً آزاد و بی‌مهار بودند، زمین را به فساد کشیده و شر آنان همه جا را فرا گرفته بود و معضل بزرگی ایجاد کرده بودند.

علامه مقدسی در کتاب خود «الروضتین فی اخبار الدوتین» در باره آن دوران چنین می گوید:

«از ابتدای حکومت آنان از ذی الحجه 299 هـ تا سال 567 هـ این بلا و مصیبت بر عالم اسلام باقی ماند، در دوران حکومت آنان دشمنان اهل سنت زیاد شدند، بر مردم تسلط یافتند و بر آنها مالیات‌های سنگینی وضع کردند و دیگران نیز به آنها اقتدا نمودند، عقاید صحرانشینان و مرزنشینانی که در مرزهای شام سکونت داشتند همچون «نصرانیه» و «درزیه» و «حشیشیه» را که افرادی جاهل و ساده‌لوح بودند فاسد کردند و آنها را به خود انداختند، فرنگیان نیز در این دوران توانستند که اکثر شهرهای شام و جزیره را اشغال کنند تا این که خداوند با ظهور خاندان اتابکی که سلطان صلاح الدین را به میدان فرستادند بر مسلمانان منت نهاد، آنها سرزمین‌های اسلامی را بازپس گرفتند و شر این دولت را از سر مردم کم کردند»(6).

طبیعی بود که اهل سنت و مؤمنان راستین از این انقلاب سیاسی که انقلابی دینی و اخلاقی در پی داشت، خوشحال شوند، علامه مقدسی که 29 سال قبل از این انقلاب به دنیا آمده و آثار و تبعات آن را مشاهده نموده است، خوشحالی و شادمانی خود را چنین بیان می کند:

«آن دولت منقرض شد و با انقراض آن ذلت اسلام نیز در مصر پایان یافت»(7).

---

(3)- الخطط و الآثار، / 2 / 341.

(4)- الخطط و الآثار، / 2 / 354.

(5)- الخطط و الآثار، / 1 / 355.

(6)- الروضتین فی اخبار الدولتین 1 / 201.

(7)- الروضتین 1 / 201.

علامه حافظ ابن قیم / در کتاب خود «الصواعق المرسلة علی الجهمیة والمعطلة» انتشار و عواقب دعوت باطنیان و سپس از انقراض دولت با دست‌های توانمند نورالدین و صلاح الدین با نیرو و نشاط سخن می‌گوید:

«دعوت آنان در مشرق به خاموشی گرایید و به تدریج در مغرب ظهور کرد و باطنیان قدرت یافتند، و بر بسیاری از شهرها چیره شدند و کم کم به مصر رسیدند و آن را تصرف نموده و قاهره را بنا نهادند و حکام و قضات آنها آشکار به دعوت پرداختند و در زمان آنها رسایل اخوان الصفا، اشارات و شفا و دیگر کتاب‌های ابن سینا تصنیف شد، ابن سینا می‌گوید: پدرم نیز از اهل همین دعوت بود، در زمان آنها سنت و کتب آثار بی‌استفاده ماند و تنها در خفا و به پنهانی مورد استفاده قرار گرفت، شعار دعوت آنها تقدیم و ترجیح عقل بر وحی بود، بر مغرب زمین و مصر، شام، حجاز و عراق استیلا و تسلط حاصل نمودند، با اهل سنت همچون اهل ذمه و معاهدان معامله می‌کردند و حتی اهل ذمه از امنیت، عزت و مقام برتری برخوردار بودند، علمای بسیاری را گردن زدند و بسیاری دیگر از وارثان انبیاء در زندان‌ها جان باختند تا این که سرانجام خداوند در عهد نورالدین و صلاح الدین اسلام و مسلمانان را از شر آنان نجات داد،



نمای درونی ازمسجد صلاح الدین ایوبی

و اسلام از این بلا و عزایی که در انتظارش بود رهایی یافت، و پس از دوران طولانی سرافکندگی و افسردگی سربلند و بانشاط گردید و اهل آسمان و زمین مژده دادند و بدر اسلام که در محاق و تاریکی بود بار دیگر درخشیدن گرفت و نورافشانی کرد، و پس از آن حالت احتضار و جان کندن روحش دوباره به او باز گشت، و خداوند به وسیله بندهٔ خود بیت المقدس را از چنگال صلیب‌پرستان نجات داد و یاوران خدا و رسول به نصرت و یاری دین برخاستند»[8].

کتاب‌هایی که تاریخ آن دوران را ثبت کرده‌اند بیان می‌کنند که عالم اسلام و علی الاخص شام و عراق از این خبر خوش استقبال نموده و نزدیک بود که مسلمانان از خوشحالی و شادمانی بپرند.

کوتاه سخن این که سلطان صلاح الدین از طرفی با ایستادگی و مبارزه در برابر صلیبیان جهان اسلام را از بردگی سیاسی و بی‌بندوباری اخلاقی و فرهنگی و از چنگال‌های غربیان نجات داد و از طرفی دیگر با منحل کردن دولت عبیدیان (فاطمیان) دروازهای فساد راه که با انتشار باطنیت و اسماعیلیت نه تنها مصر بلکه جهان اسلام را تهدید می‌کرد بست و به نابسامانی فکری و عقب‌گرد اعتقادی و انحلال اخلاقی که در طول سه قرن گریبانگیر عالم اسلام بود پایان داد.

تاریخ اسلام هرگز این دو عمل ارزندهٔ سلطان صلاح الدین را فراموش نخواهد کرد و مسلمانان در هر زمان و مکانی که باشند ممنون این مجاهد دلیر و قهرمان نستوه کُرد هستند.

تاریخ اسلام سلطان صلاح الدین ایوبی را که یکی از نشانه‌های آشکار صلاحیت و جاودانگی است و با دو عمل ارزنده خود که یکی مبارزه با صلیبیان و نجات جهان اسلام از بردگی سیاسی و فرهنگی و بی‌بندوباری اخلاقی و دیگری انهدام دولت عبیدیان (فاطمیان) که جهان اسلام را با انتشار باطنیت و اسماعیلیت تهدید می‌کرد و سه قرن گریبانگیر اسلام بود، هرگز فراموش نخواهد کرد و مردم در هر زمان و مکانی که باشند ممنون این مجاهد دلیر و قهرمان نستوه کُرد هستند.

---

(8)- الصواعق المرسله علی الجهمیة و المعطلة 1 / 333 – 334.

# سي ای اې هم خپله بستره تړلې!

عبید تنویر

د «واشنګتن پوست» دراپورلـه مخـي دامریکاڅارګره شبکه ( سی ای اې ) هم په افغانستان کې پریکړه کړې چې خپلې ګڼې مخفي اډې به تړي اوخپل پراخ جال به راټولوي.

که څه هم توره شبکه داپه افغانستان کې دخپل پوځي ماموریت دترسره کیدوپه مفهوم تعبیروي اووایي چې پراخ شتون ته یې ډیره اړتیانه لیدل کیږي ؛ خوحقایق برالااولکه لمرروښانه دي چې امریکایانو په هرډګرکې په افغانستان کې ماته ولیدله ، نه یې له یولکوزیاتومجهزو پوځیانو اومغروري تکنالوجي افغاني اودیني غرورکمزوري اوایل کړ، نه یې شیطاني اواستخباراتي جالونواو وحشتونوکوم کندووړته ډک اوبشپړکړای شو اونه یې هم په ترلینوډالرود امریکا کوم دردچې دوی یې څنګه اټکل کړي ووداکړای شو؛ نوثابته شوه چې له افغانستان څخه دسی ای اې په اصطلاح عقب نشیني دستري ماتي اوشکست لوی دلیل په ګوته کوي .

دواشنګتن پوست په وینادسی ای اې ، تګلاره داده ،چې په یوه هیوادکې خپل جال خپوراودامونه وغوړوي نوترهغویې بیرته نه ټولوي چې یایې زیاتره موخي اواهداف نه وي ترلاسه شوي اویاهم له جدي ګواښونو اورسوایيوسره نه وي لاس اوګریوان شوي ، ولې په افغانستان کې دسی ای اې په څرګندبري کوم دلیل نه ترسترګوکیږي ، ځکه طالبان له یوې ورځې نه بلې ته قوي شوي اودضعف په ځای دقوت اونفوذ خواتـه ګامونـه اخیستي اواوس خوداحقیقت هم دمنلووړوګرځیدچې طالبانوپه پوځي بریاسربیره سیاسي خوځښت اوپرمختګ هم پیل اوروان کړاوپه قطرکې یې سیاسي دفترپرانیستل شو

نوبرېښي داچې توره شبکه په افغانستان کې له جدي ګواښونواوګڼوستونزوسره مخ شوي ؛ نوځکه خپله بستره راټولوي اوښایي لدې کارڅخه یې هدف ځان له لوي تباهی څخه ژغورل وي .

دسی ای اې ، مشر«جان برنان» رسنیوسره دخبروپه

